


# تولنپوهنه


لیکوال: احمد قاسمی

ژباړه: زیر افغان



تکثیر: محسن خپرندویه

بریښنا لیک: mohsinpubs@gmail.com

وبلاگ: mohsinpubs.blogspot.com

د خپریدو نیټه: چنګابن ۱۳۸۱- جولای ۲۰۱۲

## سرليکونه مخ

د وګړو تر منځ څه توپير شتون لري؟ ۶
وګړي خپل چاپېريال پاللي ۹
د وګړو توپير ټولنې را منځ ته کړی ۱۹
زموږ لمړنيو نېکونو څرنګه ژوند کاوه؟ ۳۰
ټولنيز توپيرونه څنګه رامنځ ته شول؟ ۳۸
قانون څنګه رامنځ ته شو؟ ۴۹
څنګه د زيار ايستونکو زوښا (شيره) يې زبېښله؟ ۵۹
ګلاديا‌توران ۶۵
د سپارتاکوس جګړه ۷۴
د مريه بدلون په سرف باندې ۸۹
د کوچنيو او منځنيو ماليکتونو له منځ تلل ۹۴
سرفان او نور بزګر ۹۹
واسال او سينيور ۱۰۹
رنځورتيا، قحطی، مرګ، پاڅون ۱۱۷
صنعت او سوداګري تر يوولسمې پېړۍ پورې ۱۲۴
صنعت او سوداګري تر يوولسمې پېړۍ وروسته ۱۳۱

د بورژوازۍ او ازادو ښارونو رامنځ ته کېدل ۱۳۷
د کمون فیوډالي ښارونه ۱۴۱
د صنعت او سوداګرۍ پراختیا فیوډالي اصول ړنګ کړل۱۴۵
له انګلستان څخه د یهودانو اېستل ۱۵۲
د کار د قانون منځ ته راتلل ۱۵۵
د بزګرو خوځښت په انګلستان کې ۱۵۸
د سرفانو په وضعې باندې د ټوکر اوبدلو صنعت اغېزه ۱۶۲
د ۱۳مې پېړۍ تر پایه پورې فیودالي دور ته بشپړه کتنه۱۸۵
۱۴مې و ۱۵مې پېړۍ ته بشپړه کتنه ۱۹۶
۱۶مه پېړۍ په صنعت او سوداګرۍ کې لوی بدلونونه ۲۱۶
د صنایعو لنډ تاریخ ۲۵۲
د ۱۷مې پېړۍ ځانګړتیاوې ۲۶۶
د ۱۸مې پېړۍ له ځانګړتیاوو څخه ۲۷۳
پاچا او لویان ۲۸۳
باستیل ۲۸۸
د فرانسې ولس د پرګنو ژوند مخکې له انقلابه ۲۹۶
له انقلاب څخه وړاندې خوځښتونه ۳۰۵
د فرانسې انقلاب نه ډېره کېدونکې ۊ ۳۱۰

## ۱

## د وګړو تر منځ څه توپیر شتون لري؟

څلوریشت کاله پخوا د مرغومی میاشت په یوه ورځ، زموږ په پړوس کې، په یوه لوی کور کې یو ماشوم وزیږېده، چې د سیمې ټولو اوسېدونکو د هغه د مور او پلار د خوښمدو لپاره د هغه د زیږېدو جشن ونېوه. یوه طبیب او قابلې له یوې اونۍ راهیسې د هغه د زیږېدنو پاملرنه کوله او همدا چې نړۍ ته راغی، مهربانې او ښایسته دایې ته یې وسپاره او ځانګړې کوټه یې ورله سینګار کړله.

په هماغې موکې کې زموږ د سیمې په سر د یوې هټۍ لاندې یوه سمڅه شانې زرندی(زیرزمیني)، چې له ختو نه لیو شوي دیوالونه یې درلودل، پرته وه، چې د لیو ډیرې برخې یې تویې شوې وې او هغه یې لا ډېره سمڅې ته ورته کړې وه.

د لمر رڼا یوازې د سمڅې له دړې څخه، چې نیم متر له ځمکې نه ښکته پرته وه او جګوالی یې

ټول له یوه نیم متر څخه زیات نه ؤ، د سمڅې منځ ته ننوتله. په دې زرندۍ کې یوه کورنۍ یانې یو پلار، یوه مور او یو دوه کلن زوی اوسېدل او په ژمو کې یې د کورنۍ له زاړه تره څخه، چې دوی ته یې سیمه راوړله، هرکلی کولو. اتفاقن د همدغې ورځې په شپه د کورنۍ مور په داسې حال کې، چې پرته له مېږه څخه یې هېڅ پرستار او پرته له شړې وړې برستنې څخه د پټېدو او هوساینې هېڅ وزله (وسیله) نلرله، یو ماشوم وزېږاوه، چې درې ګنټې وروسته، چې سترګې یې لا د نړۍ پر مخ نه وې غړولې، د ساړه له زوره له نړۍ څخه بستره بار کړه.

د دې ماشوم او هغه ماشوم تر منځ، چې په هغه لوی کور کې نړۍ ته راغی، څه توپیر شتون لاره؟ ولې د هغه زېږېدنو لپاره لسګونو خلکو جشن ونیوه او د دې یوه مرګ لپاره د مور او پلار له سترګو څخه پرته بله هېڅ سترګه و نه ژړېده؟ ولې یوه ګرمه بستره د دې ګران میلمه په برخه نه وه؟ ولې له دوی څخه یوه په دنیا کې برخه نلرله او ولې دا یو بل د نړۍ ټول نعمتونه د ځان لپاره چمتو ولېدل؟ آیا

هغه کومه ګناه لرله، چې په دغه بلا واوښت؟ که چېرې هغه ماشوم یې د شپې لخوا د مرګ له کټه اوچت کړی او له ساړه نه یې ساتلی او په راتلونکې ورځ یې په پټه د دې بل پر ځای ایښی وای، آیا د ده برخه لیک بدلون نه مونده؟ څرګنده ده، چې بدلیدلو او دی هم د ښاغلزیو په ډله کې راتللو.

له دې کتنې نه څه پایله اخلو؟

**داسې پایله اخلو، چې ټول خلک یو شان نړۍ ته راځي او توپیرونه، چې د خلکو په منځ کې لېدل کېږي، غالبن د دوی له واکه وتلي دي او د دوی په ټولنیز موقعیت پورې تړاو لري.**

*****

## ۲

## وګړي خپل چاپېريال پالي

هغه نوی زېږېدلی ماشوم مړشو، خو د ده دوه کلن ورور ژوندی پاته شو. که چېرې مور دا هلک او هغه د شتمنو بچی د ژوندانه په ډګر کې وڅارو، نو هغه ټکی مو چې پورته بيان کړ لا ښه څرګندېږي.
دغه بېوزلي ماشوم، چې حسين نومېده، پلار يې لرګي ماتول او مور يې په کورنيو چارو کې کورنيو سره مرسته کوله، د بېلګې په توګه کالي يې وينځل او له دې لار يې د مېړه په وزرونو لاس را کاږلو. هر کله به چې د کاليو پرېمينځلو لپاره بهر ته وتله، نو حسين به يې له ځانه سره څکولو او کله چې لوی شو د کاليو يوه برخه به يې د ده په سر اېښودله. خو کله به چې د بېلګې په توګه د يوې ګنتې لپاره له سمڅې څخه وتله، نو حسين به يې په زرندی کې پرېښوده او دړه به يې د هغه په مخ تړله، تر څو بهر

راونه وځي او تر پښو لاندې نه شي. حسين طبيعتن يو ښه مزاج لرلو، خو په څلور کلنۍ کې يو ځل کلک ترټټره (سينه بغل) شو او له هغه ځايه چې کافي پوښښ، پرستار، طبيب او درمل يې نه درلوده، مرګ ته ورلنډ شو او وروسته له هغه چې تصادفن د مرګ له منګولو وژغورل شو، بشپړه کمزوری او مړاوې شو او تل له ټټره کړېدلو.

کله چې لوی شو، نو نور يې کولای نشول دی په زرندۍ کې خوندي وساتي او دی په هوسا زړه سره د کوڅې په دوړو او خاورو، ختمو او خړوبونو کې لتېده او د خپلو بې سره همزولو سره يې ټېلې – لوبې کولې. له هغه ځايه چې نېږدې ؤ، دی هم له بې سرۍ او وزګارتوب سره روږدي شي، نو لا لس کلن شوی نه ؤ، چې چميار ته يې وسپاره، ترڅو هم يو کسب زده کړي او هم له کوڅې څخه راټول شي. حسين په لومړيو ورځو کې له استاذ څخه ډېر کوتکونه وخوړل، خو ژر يې خورا هوښياري وښودله، هغه هم هسې، چې د سبناري څخه پرته يې د ورځې دوه رياله مزد هم ورله وټاکه. ورو ورو د حسين کار

ښه شو او مزد یې د ورځې پنځه ریالو او یو تومان ته ورسېده او لا شپاړس کلن شوی نه ؤ، چې مزد یې پنځلسو ریالو ته ورسېده.

د بوټونو ګنډلو کار خورا یوغږی (یکنواخت) او ستومانونکی ؤ. سهار چې کارګر مغازې ته راتلل، نږدې نیمه ګنټه د دوی مجلس تود ؤ او په خپلو کې یې خبرې اترې کولې، خو ژر یې خبرې خلاصېدې او په چپتیا کې به ننوتل او د خویګي (مشته) د ټپ ټپ، د ځټک د وهلو او د تار د کاږلو غږ ترغوږه کېده. کله ځینو کارګرانو انګازې کولې او ژر غلي کېدل او هماغه کړېدلی حالت یې خپلولو.

په دې چوپتیا کې د څه شي په فکر کې وو؟ په نږدې توګه کولای شو ووایو، چې هېڅ فکر یې په سر کې نه لاره، ولې چې د هماغه بوټ ګنډلو له نړۍ او تنګې او زړه نبوونکې فضا څخه پرته یې بله کومه نړۍ نلرله. دوی ژوندون تېراوه، پرته له دې، چې د ژوندانه په تېرېدو خبر وي. ژوندانه د دوی لپاره له کارکولو او رنځ وړلو څخه پرته بله مانا نلرله.

سهار کارته راتلل او اته او نهه او کله به يې لس بجې له کار څخه لاس اېستلو او هر څوک د خپل کور په لور روانېده او خپل ستومان بدن يې د خوب لاس ته سپارلو او سبا ته د دې لپاره چې د کار موکه ناوخته نه شي، له خوبه به راولتېدل او د بې ځانه او اوتوماتو افزارو په شان به د کار په لور چټکېدل.

حسين پروګرام خورا منظم سرته رسولو او له دې کبله، چې د نارينه ؤ په ډله کې راغلی ؤ، مزد يې اخيستلو او له خپل مور او پلار سره يې مرسته کوله، خورا زړه خوښی ؤ. خو ځو کاله چې تېر شول ورو ورو ستومانه شو، خو کوم نوی شی د ده په ژوندانه کې نه پېښېدو، ځان يې ستومان او اروا يې مړه شوې وه، اصلاً نه پوهېدو، چې د څه لپاره ژوندی دی او کوم زړه خوښون لري.

دغه حالت، چې حسين په هغه اخته شوی ؤ، دا خپګان او غمجنوالی، چې عموماً د ټولنې د بې برخو لمن نيسي، د ژوند تر ټولو لوی خطر دی او وګړي ځان وژلو او يا پسات ته ( چې په رښتا سره تدريجي

ځان وژنه ده) وربولي. د دې خطرناک مرض یوازینۍ هوبله د مبارزې د روحیې منځ ته راوړل دي.

د ټولنې پر دې ځپل شویو باید غبر وکړو، چې مه مایوسه کیږی، مه زړه توري کیږی، ژوندون پخپله کرکه جن نه دی، که د ژوندانه بهیر ته بدلون ورکړی، که دا ناولي ډېرانونه د ژوندانه له ویالی څخه لبرې کړی، ډېر خوږ او ښایسته به شي.

آیا ټول په نړی کې بد مرغه دي؟ آیا ټول په بیوزلی او اسکرېنه (فلاکت) کې ژوند کوي؟ ولې ځینې نیکمرغه دي؟ ولې ځینې هوساینې ته رسېدلي؟ ولې د نیکمرغۍ دړې ستاسو په مخ تړلې دي؟ ولې په ځور او خوارۍ باندې محکوم یاست؟ د هغه پرځای، چې مایوسه کیږی او له ژوندانه څخه لاس اوباسی، د ژوندانه د دې ستونزو د حل په فکر کې واوسی. هغه وخت به وګوری، چې هره ورځ نوې خوشحالی ستاسو هرکلي ته راځي او هره ورځ د هیلو لا زیاته رڼا ستاسو په زړونو کې ځلیږي.

خو حسین د څه ډول خلکو په منځ کې ژوند کولو؟ د داسې وګړو په منځ کې، چې هغوی ټول د

ځور او غمجنتیا سیوري ته لوی شوي وو، د داسې وګرو په منځ کې، چې د مبارزې اروا په دوی کې نتوتې نه وه او په رښتیا سره «زړه مړاوي» وو. له دې کبله د غمجنتوب ناروغۍ حسین ته سرایت وکړ او هغه یې ورو ورو د پسات په لور وخوځاوه. غوښتل یې چې د ژوندانه ستونزی هېرې کړي او د ده پښو مخې ته له میخانو او عشرت ځایونو څخه پرته بله لار پرته نه وه. دی هم د نورو زړګونو بیوزلو په توګه د تباهۍ دې کانون ته ورجلب شو.

کله ستاسو د یوه غاښ په مخ یو تور وړوکی ټکی پیدا کېږي، چه په لمړي لید سره هېڅ د اهمیت وړ نه دی، خو هغه تور ټکی خپل کار کوي او هره ورځ لا لوییږي، هسې چې یوه ورځ ټول غاښ نیسي او هغه پټوي. ټولنیز پسات هم په همدې توګه رابرسېره کېږي او همدا اخته (خاصیت) لري.

یو دوه کاله تېر نه وو، چې حسین د پسات په دریاب کې ډوب شو، هسې چې که اوس یې ووینی، وبه یې نه پېژنی: له جوړښته رژېدلی، تل مست دی

او ان دا چې سږکال د يوې دوو مياشتو په موده د چارې ابستلو په تور زندان کې ؤ.

ټول له ده نه کرکه کوي، ټول هغه بنکنځي، ټول دی د ټولنې ميکروب ګڼي او ان ځينې د ده او ده ته ورتو وژل واجب ګڼي، خو که موږ لږ څه ژور شو او وګورو، چې آيا حسين دومره ملامت دی، آيا ده ټولنه فاسده کړې يا ټولنې دی تباه کړو؟

کله چې حسين ماشوم ؤ، ټولنې د ده پالنه ونکړه، دی يې د بېوزلۍ او ناروغۍ لاس ته وسپاره، د ده هېڅ روزنه يې ونکړه. حسين په حقيقت کې د ټولنې خپل ودې ونه وه، چې د زرهاوو مخالفو بادونو مخې ته ولوېدو، نو په دې توګه کله چې وده يې وکړه، خپل بور (ثمر) يې ټولنې ته وروبخښلو، يانې خپلې مېوې يې د ټولنې په واک کې کېښودې.

خو ټولنې له ده سره څه وکړل؟ د ده د مېو بور يې واخيست او هېڅ باندې والی او ګټه يې ده ته ورنکړه. حسين کارکاوه او شتمني يې توليدوله، خو د ټولنې جوړښت داسې ؤ، چې له دې شتمنۍ نه

هومره، چې د حسین ژوندون هوسا کړي، د ده لاس ته نه ورتلله.

حسین هېښکله ونکولای شول، چې د اوسېدنو وړ کور ولري، هېچکله یې و نکولای شول، کافي ډوډۍ وخوري، هېچ کله یې ونکولای شول، مناسب کالي واغوندي. حسین سره له دې چې ټولنې ته یې شتمنی ورکوله، له کلتور او روغتیا څخه بې برخې ؤ. آیا په دې توګه یې حق نه لاره، چې ټولنې ته په بده وګوري، بلکه له هغې سره غلیم واوسي؟

که چېرې تاسو یو بوټی په داسې ځای کې، چې هلته هوا او رڼایي نه وي، کېږدی، روښانه ده، چې مړاوې کېږي او وچېږي او بور ته نه رسېږي. زموږ ټولنه له خپلو وګړو سره په حقیقت کې همدا اړونـد لري، یانې د وګړو د پاللو لپاره د کافي ځواک خاونده نه ده او هغه ده، چې وګري مړاوې او فاسدوي.

له بله پلوه، هغه لامل، چې د وګړو په فاسدولو کې تر ټولو خورا اغېزناک دی، بې وزلي او اسکېرنه (فلاکت) دي. که د حسین پلار بېوزلی نه وای،

زوى يـې پرتـه لـه روزنـې نـه لويېـده، نـاروغ او خوارچنکى نه کېده، له کلتور او روغيتا څخه بې برخې نه پاتې کېدو او په پاى کې فاسد نه راوتلو.
له دې ځايه څه پايله اخلو؟
داسې پايله اخلو، چې:
۱ – د وګـړو ځانګړتيـاوې د دوى لـه چاپېريـال سره اړوندې دي او که مور وغواړو وګړي سم شي، نو له وړاندې بايد د چاپېريال په سمولو پيل وکړو او داسې وکړو، چې هر څوک وکولاى شي، چې د ټولنې له شتمنيو څخه برخمن شي. هغه څوک چې غواړي د دې خلاف زبات کـړي، هغـه کسـان دي، چـې د ټولنې له سمولو څخه ډارېږي، ولې چې پوهېږي، چـې پـه دې توګـه د دوى د نـاوړو ګټـه اخيسـتلو مخنيوى کيږي.
۲ – لمړى ګام چې د ټولنې د سمولو پـه لار کې پورته کيږي، بايد د مادي وضعى د ښه کولو په لار کې وي، ولې چې که ډوډى نه وي، کلتور او روغتيا به نه وي او يوازې د مادى وضعې په ښه کېدو سره ده، چې نورې ټولنيزې وضعې اصلاح کولاى شو.

او د دې لپاره چې خبره لا روښانه شي، هغه د شتمن ماشوم هم، چې مخکې مو د ده په هکله خبرې وکړې، باید د ژوندانه په ډګر کې په پام کې ونیسو.

*****

# ۳

## د وګړو توپير ټولنې را منځ ته کړي

دا ښاغلزوی (آقازاده) فريدون نومېده. پلار يې له هغه ځايه چې د ځوانی په مهال په عياشۍ کې افراط کړی ؤ او خپل ځان يې تباه کړی ؤ، ماشوم يې نه کېدو. له همدې کبله يې د فريدون نه څو کاله مخکې نذرونه او نيازونه وکړل او ګڼ شمېر ښځې يې بدلې کړې او ډېرې روپې يې په ډاکټر او درملونو ورکړې، ګوندې ماشوم يې پيدا شي.

کله چې وروستنۍ مېرمنې يې زوی وزېږاوه، له خوښۍ نه په پوټکي کې نه ځايېدو او د دې له ډاره چې دا ماشوم به هم مړ شي او له لاسه به ووځي، نو د ده په پالنه کی يې افراط کولو. په ځانګړې توګه چې د فريدون مزاج د پلار د ناروغيتا له کبله ځواکمن هم نه ؤ، خو يو دوه کاله چې تېر شول، د ډاکټر درملنو، د دايې شېدو، پرنګيو وچو شېدو او نورو پالنو طبيعي ستونزه جبران کړه او د فريدون د

کمزورتیا نښې ورو ورو ورکې شوې، د پلار زړه یې له اندېښنې راوویسته.

له فریدون څخه هېڅ څه نه سپمېدل او د ده اراده د ټولو له اردې څخه پورته وه. له همدې کبله خورا نازولی او پلمه لټی لوی شو. په هغه موکه کې درې ټېره بایسکلونه تازه ایران ته راسېدلي وو او په ډېرو لوکسو لوبلوښو کې شمېرل کېدل.

فریدون یو داسې بایسکل او یو ځانګړی چوپړ لاره، چې ځان پسې به یې روان کړی ؤ. هر کله به چې په کوڅه کې ستومانه کېدو، ځانګړي چوپړ باید دی او د ده بایسکل په شا کړي او کور ته یې رسولي وای.

وروسته چې لږ څه لوی شو او وړکتون ته تللو، دې ځانګړي چوپړ بکس او د وچې مېوې کڅوړه یې ورپسې وړله. کله چې هم اوه کلنی ته ورسېدو او ښوونځي ته روان شو، بیا دا چوپړ لکه سیوری ورپسې ؤ او د دمو(تفریح) په زنګونو کې به یې څه خواړه ورکول.

فريدون د هغې پاملرنې په پايله کې، چې لـه ده ځخه کېدله، هومره ګستاخ شوی ؤ، چې هيڅ ځـوک يې له ځانـه پورتـه نشـوای کتلی او ان ځـو ځلـه يـې خپل ښوونکی وښکنځه او له ښوونځي نه مرور شو او له هغه ځايه چې پوهېده، چې ده ته د پلار د ځـواک او دستګاه لپاره هېڅکله سزا نه ورکوي، د ښـوونځي په هېڅ يوه نظام باندې تړلی نه ؤ او سره له دې چې کورنی ښوونکی يې لرلو، لوست ته يې ډېره مينـه نـه ښودله. سره له دې هر کالې پورته تللو، تر ځو شـپږم ټولګي ته ورسېدو.

هلته له هغه ځايه چې پـايليزې ازمـوينې وې يـو کال پاتې شو.

د منځني ښوونځي په شپږم کال کې يې هـم يـو کال ډېره ولګوله، خو لـه هغـه ځايـه چـې د لګښـت او زده کړې اسباب يې چمتو وو، هېڅ رنځ يې ځان تـه ورنکـړ او پـه پـای کـې يـې ځـان لـوړو زده کـړو تـه ورساوه. يو کال د ژبې لوړو زده کړو ځـانګې تـه لاړو، خو په پام کې يې راغلـل، چې د ژبـې زده کـړه خـورا

ګرانه ده، نو له دې کبله له هغه ځایه راووت او د حقوقو په پوهنځي کې یې نوم ولېکلو او تر اوسه پورې هر څنګه چې وو، ځان یې دریم ټولګی ته رسولی دی.

فریدون له هغې ورځې نه چې دنیا ته راغلی، څو کوږدنې یې لرلې. ولې چې خپلو خپلوانو، دوستانو او آشنایانو غوښتل چې د پلار د شتمنۍ لپاره خپله لور په ده پورې وروتپي.

البته په هغو ټولنو کې، چې پیسې د ستونزو حلوونکې دي، ټولې ټولنیزې اړیکې د پیسو پر سر ولاړې دي، مړوښي (زناشویی) هم په حقیقت کې د روپیو یوه معامله ده. تل هغه کورنۍ، چې په یوه کچه شتمني لري، په خپلو کې تړون کوي او په حقیقت کې خپلو پیسو ته پیوستون ورکوي او دا هېڅ په پام کې نه نیسي، چې زوم او ناوې دې په خپلو کې جوړښت ولري.

له همدې کبله د فریدون لا اولس کاله بشپړ شوي نه وو، چې د یوه سوداګر لور یې ورله واده

کړه. ډېر په موکې کار هم ؤ، ولې چې یوه موده کېدله، چې د فریدون سر او غوږونه خوځېدل او نه یوازې دا چې په رستورانونو کې یې شراب څښل، بلکه ورو ورو په نورو پساتونو هم اخته کېده، خو ښځې کولو هم فریدون راټول نکړ، ولې چې فریدون له ووړکې توب نه ځان په عیش او عشرت کې لېدلی ؤ، په نړۍ کې پرته له خوند اخیستلو پر بل هېڅ څه نه پوهېدو، وزګار هم ؤ او وزګارتیا د فاسدېدلو تر ټولو لویو لاملونو څخه ده.

کله چې انسان وزګار پاتې شي، د خیال ځواک یې په کار لوېږي او که ډېر پوه او پوخ سړی نه وي، نو خیال یې تل د جسماني خوندونو او کیف او خوښۍ خوا ته ځي او دی اړباسي، چې پر پساتیزو کارونو لاس پورې کړي. له وزګارتیا څخه پرهېز وکړئ، ولې چې وزګارتیا د عیبونو سرچینه ده.

خو فریدون ورځ په ورځ د پسات په ګند کې لا ډوب شو او درې کاله پخوا یې داسې یو کار وکړ، که

بل چا کړی وای، پرته له لیاړو او لعنت څخه یې بل څه نه لېدل.

کیسه دا وه، چې زه یوه ورځ سهار وختی، چې تروږمی لا خورې وې، له کوره راووتم، چې ځان ۸ بجې پوهنتون ته ورسوم. هوا ډېره سړه او یخ پروت ؤ او ما سر د کوټ په ګرېوانه کې ننه ایستی ؤ. یو وار مې د کوڅې په ویاله کې، چې لږې اوبه پکې روانې وې، یو څه تر پامه شول. لمړی مې فکر وکړ، چې د پېشو بچی دی، خو کله چې نږدې شوم، داسې څه مې په سترګو شول، چې پر خپل ځای کې وچ شوم. ومې لېدل، چې یو نوی پیدا شوې ماشوم یې په یوه ټوټه ګېلم کې تاو کړی او د ویالې منځ ته یې اچولی ؤ. البته ماشوم تور ګرځېدلی او مړ شوی ؤ.

د دې خبرې انګازه په سیمه کې تاو شوه او د هغې ورځې په سبا ښکاره شوه، چې د فریدون د کور چوپړه د ده نه ننګه شوې وه او کله چې پوه شول، چې امیندواره ده، له کوره یې شړې. بې هوبله (بې چاره) په بل کور کې په مزدوری بوخته کېږي او خپله امیندواري پټوي. په پای کې کومه ورځ چې

غواړي ماشوم وزيږوي، د زړه د درد په پلمه خپلې کوټې ته ځی او درد زغمي او پرته له کوم غږ او غوږه ماشوم زيږوي او سم لاسي د ماشوم په خوله لاس ږدي، ساه يې بندوي او په شپې کې يې وياله کې اچوي، تر څو په دې توګه خپل پټ وساتي.

ټولو دې بې هوبله ښځې ته ښکنځلې کولې او د تحقير او کرکې په سترګو يې ورته کتل او ويل يې، چې دا بايد سنګساره شي، خو هيچ چا هم د فريدون څخه خبرې نه کولې، هېڅ چا دا حساب نه کولو، چې دا ښځه ډېر کلونه کيږي، چې ميړه يې مړ دی، د تفريح هيڅ وزله نلري، ناپوهه ده، ژر دوکه خوري. خو فريدون له کومې ورځې نه چې ژنځی شوی دی، ښځه يې کړې، د خوند هر ډول وسايل لري، په هرڅه پوهيږي او سره د هغه يې داسې کار کړی او بيا حاضر هم نه دی، چې پايلې يې وزغمي.

له بده مرغه زموږ په ټولنه کې هر راز سزا چې ده ، د ښوزلې لپاره ده او تل د شتمنو په عيبونو او پساتونو سرپوښ کيږدي.

د ببلګې په توګه فريدون په شپو شپو نشه کوله، خو له هغه ځايه چې دا شراب يې په لوړو مېلمستونو کې څښل او پياده هم کور ته نه راته، چې وزنګېږي، هېڅ چا عيب نه ګڼلو او د ببهوبله حسين په توګه يې نه ملامتولو او د دې پر ځای چې ووايي، ډېر بې ننګه او فاسد دی، ويل يې، ډېر «زړه بايلونکی» او چړچيي دی!

زما موخه دا نه ده، چې د فريدون ټول اخلاق څرګند کړم، موخه مې دا ده، چې د فريدون په دود، روزنې او ژوندانه ډول تاسو ته ښکاره کړم، ترڅو دې ځای ته ورسېږو، چې ښاغلي فريدون خان د شپې په يوه ناستي کې، چې د دوی په خيال له ټولنيزو سمونو څخه خبرې کولې، خپلو ملګرو ته ويل: «هو، ذاتی استعداد، بل شی دی. د ببلګې په توګه زه او دا چميار حسين سره هم لوبي وو. خو برسېره پر دې چې پلار يې لنډه راغی او دی يې پرې نښوده، چې درس ووايي، ده خپله هم خپل بخت ته لګته

ورکړه، ګوندې ده هم کولای شول له چمیارۍ څخه د کور او ژوندانه څښتن شي.»

راځی چې وګورو، آیا فریدون په دې خبره کې، چې کړې یې ده، حق لرلو او آیا کولای شي حسین یا پلار یې ملامت کړي؟ آیا فریدون د دې لپاره چې ننه نی درجې ته ورسیږي، زیار اېستلی؟ آیا د ده هڅه له هغه زیار سره، چې حسین زغملو، د ورته کولو وړ ده؟ د دې ټولو پوښتنو ځواب منفي دی. له بلې خوانه باید ووینو، چې آیا فریدون ډېر بې لارې دی یا حسین؟ کوم یو یې حق لري، چې ډېر بې لارې وي؟ حسین چې بې کوره او کډې دی او د ژوندانه هېڅ وزله نلري یا فریدون، چې هرڅه لري او د خوند اخیستلو وسایل یې له هره پلوه چمتو دي؟ د دې پوښتنو ځواب هم د فریدون په ضرر دی.

هغه څه چې فریدون یې مخ په وړاندې یووړ، د ده خپل زیار نه ؤ، بلکه د ده ټولنیز پوړ ؤ. فریدون یو کال د زده کړې په دوره کې محروم هم شو، خو ټولنیز پوړ پرې نښود، چې پاتې شي او دی یې

مخکې کړ. ښايي نن د ده فکر د حسين له فکره ډېر ښه وي، خو دا د فريدون د ذاتي استعداد دليل نه دى، بلکه د دې لپاره دى، چې له وړوکوالي څخه يې پرې نښوده، چې د حسين فکر په کار ولوېږي او ان يو ځل يې هم و نه ازمويلو، چې حسين څه استعدادونه لري او له دې پلوه د ده استعدادونه ټول خوشې بې ځايه لاړل.

البته زموږ موخه دا نه ده، چې ووايو، چې د بشر ټول وګړي طبيعتن له ټولو خواوو نه په خپلو کې مساوي دى، خو دا وايو چې:

۱ – عمومن وګړي که يو شى لږ لري، بل شى ډېر لري، د بېلګې په توګه شونې ده، چې يو قوي منګوله ولري، خو سترګې يې ډېر لېرې ونشي کتلاى او د يو بل سترګې به ډېر لېرې وګوري، خو منګوله به يې ځواکمنه نه وي. له دې کبله موږ نشو ويلاى، چې له دوى څخه يو د بل په پرتله مطلقن بر دى.

۲ – ډېر هغه توپيرونه، چې نن د انسانانو په وګړو کې شتون لري، د هغه ميراث پايله دي، چې له

پلاره یې اخیستی وي او هغه میراث غالبن د ټولنیزې وضعې په پایله کې پیدا شوی وي. د بېلګې په توګه د یوه ترياکي سړې ځوی د یوه کره سړې د زوی په پرتله په بنسټیزه توګه ډېر ضعیف راځي. نو که موږ چېرې ټولنیزه اوضاع اصلاح کړو، له دغو توپیرونو څخه ډېري یې له منځه ځي.

۳ – دا ټول توپیرونه، چې نن یې په ټولنه کې د بشر په وګړو کې وینو، د هغو په طبیعی توپیرونو پورې اړه نلري، بلکه ټولنیزې وضعې زېږولي او موږ د دې لپاره چې د بشر وګړي تساوي ته نږدې شي، باید زلنده (ظالمانه) ټولنیزه وضعه، چې بې دلیله د وګړو تر منځ توپیر پیدا کوي، له منځه وېسو.

اوس ووینو، دا زلنده ټولنیزه وضعه څرنګه پېدا شوه؟ آیا بشر له هغې ورځې نه چې د زمکې په سر څرګند شو، دا زلنده ټولنیزه وضعه یې لرله؟

*****

## ۴

## زموږ لمړنيو نیکونو څرنګه ژوند کاوه؟

د دې لپاره چې موضوع روښانه شي، ووينو چې زموږ لمړنيو نيکونو يانې د بشر لمړنيو وګړو، چې د زمکې پر مخ يې شتون وموند، څرنګه ژوند کاوه؟

د دې لپاره چې د هغو وګړو ژوند خپلو سترګو ته ودروو، بايد د ټولنې ننه نی ژوند له خپله پامه لرې کړو، ولې چې دا دواړه ژوندانونه يو بل ته ډېر لرې ورته دي. موږ بايد له ياده و نه باسو، چې په هغه وخت کې له ننه نيو صنعتونو څخه يو هم شتون نه لاره او هغه بشر، چې تازه يې د ځمکې پر مخ شتون موندلی ؤ، له کور جوړولو، کاليو ګنډلو، خوراک پخولو او په همدې توګه له کرهڼې او مالدارۍ څخه يې کولای نشول پوهه ولري. د بشر وګړو په هغو ځايو کې چې ژوند پکې اسان ؤ، د ګلو په توګه ژوند کولو او خواړه يې عمومن د ونو له مېوې څخه وو.

په هغه وخت کې زمکه هم له نن څخه ډېره ابره وره (حاصلخیزه) وه او په بنه توګې یې د دوی د خواړو بستیا(تکافو) کوله – ولې چې ونې خپله یوه برخه خواړه له ځمکې څخه اخلي او یوه برخه له هوا څخه ـ له دې کبله کله چې میوې او یا تنه یې وچېږي او د زمکې پر مخ تویېږي، زمکې ته د خوړو مواد له هغې کچې نه چې له زمکې څخه یې اخلي، ډېر ورکوي او پایله یې دا کېږي، چې د ځنګله زمکه تل له قوته ډکه او ابره وره ده.

په هغه زمانه کې چې بشر لا ونې د سوزولو، کورجوړولو یا نورو چارو لپاره له منځه نه وړلې، زمکه تل ابره وره وه، هغسې چې د انسان خواړه یې په بنه توګه چمتو کول.

موږ د بشر لمړني وګړي نه دي لېدلي، چې څه ډول یې ژوند کاوه – خو سربېره پر دې چې ننه نیو علومو تر یوه هانده پورې د دوی ژوند کشف کړی، تر شلمې پېړۍ پورې د زمکې پر ځینو سیمو لکه د افریقې او امریکې په ځینو ټکو کې ځیني خلک وو – او بنایي لا هم د دوی په شان وي – چې تقریبن

طبیعي ژوند یې لرلو او په همدې توګه مو چې روښانه کړه، ژوند تیرولو او مور د هغوی د ژوندانه له مخه کولای شو د بشر د لمړنیو وګړو په ژوند پوه شو. د لمړنیو انسانانو په قبیلو کې ټولو کار کولو او د خپل کار پایله یې د قبیلې په اختیار کې ایښودله او په دې توګه ټولو د یوبل له کار څخه ګټه پورته کوله. د ښېلګې په توګه هر څه به هغه مېوې، چې ټولې کړې یې وې، د کورنۍ ګډې ډېرۍ ته راوړلې او هرچا له ډېرۍ څخه د خپل خوراک په کچه جګولې. ښایي وپوښتی، چې څنګه هیچ چا متې له کاره نه ایستلې او د کار ابرې د ویشلو په سر یې په نورو ناتار (ظلم) نه کولو؟ د دې لپاره چې دا فکرونه زمور د ننه نۍ ټولنې برخه ده او په هغه دور کې د چا فکر ته هم نه راتلل، چې کار ونکړي او ډوډۍ وخوري او یا د څه شي په سر حرص وکړي. تر ټولو ښه بېلګه یې د بشر همدا طبیعی ژوند دی، چې بېلګو یې په افریقا او امریکا کې د پوهانو نظر ځان ته راواړولو.

د لویو توپیرونو له ډلې څخه، چې د هغې ورځې ټولنې او زمور د ننه نۍ ټولنې تر منځ شتون لري، یو

يې دا دی، چې په لمړنۍ ټولنې کې د حق او دندې تر منځ کوم توپير شتون نه لاره، په دې مانا چې موږ د بېلګې په توګه نن له ځانه سره وايو، چې دنده مې د ټولنې په اړوند دا ده، چې کار وکړو او حق مو دا دی، چې له ټولنې څخه برخه واخلو. خو لمړني انسان د دغو په منځ کې څه توپير نه کولو او هېڅ وخت يې د بېلګې په توګه له ځانه څخه نه پوښتل، چې خوړل، لماستل او ښکارکول د ده لپاره يو حق دی او که دنده – ده هماغسې چې خوړل او وېده کېدلو، هماغه شان هم ښکار ته تللو او کار يې کولو او د قبيلې د نظم پاسنه يې وکړه.

هغه زمکه، چې هرې قبيلې د هغې په مخ ژوند کاوه او له هغه نه يې برخه اخيستله، د قبيلې ټولو غړو پورې يې اړه لرله او د قبيلو تر منځ به يوه ځنګل او يا يوې نه اوسېدونکې سيمې واټن جوړاوه.

اوس ووينو، په داسې چاپېريال کې د بشر وګړي څرنګه بايد واوسي. ومو ويل چې وګړي د خپل چاپېريال له خوا روزل شوي، نو اوس چې موږ تر يوه

هانده پورې چاپېريال وپېژنـدلو، کـولای شـو د وګړو دځرنګوالي اټکل وکړو. کله چې ټـول وګـړي لـه يـوې اوبو او هوا څخه بـرخمن کيـږي، لـه يـوه ډول خـوړو څخـه خـوري، پـه يـوه کچـه بربنـډ دي او يـو ډول پوښـاک لـري او د قبيلې نظـم د ټولـو لپـاره يـو ډول دی، په دې بڼه کې نږدې ټول سره يوشان کيـږي او ظاهري او معنوي توپيرونه د هغو په منځ کې نشـته او يا خورا کم او لږ دي.

هر څوک خپلواک ژوند لري، چې يوازې د قبيلې له ژوند سره يې هـم غـږي سـاتي او پـه هـيڅ ډول د کوم وګړي اېل (تابع) نه دی. لـه دې کبلـه ټـول ازاد دي او د مريه توب فکر اصولن وجود نلري. کله چې يوه قبيله له بلې سره په جګړې اختـه کيـږي، شـونې ده چې هغه له منځه يوسي، خو شونې نه ده، هغه تـر خپـل اېلانيـت (تابعيـت) لانـدې راولـي، ولې چې د لمړي بشر وجود له ازادۍ سره غګـل شـوی او ازادي د ده د شتون لپاره لازمه وه.

نـو ووينـی، چـې د هغـې ورځـې بشـر او زمـوږ تـر منځ، چې خپلـه ازادي د وړو شـيانو د ازادۍ پـه بـدل

له لاسه ورکوو، څه لوی توپیر شتون لري؟ موږ پرته له کوم دلیل څخه چمتو یو، د نورو لاسبرى (تسلط) د ځان په اړه ومنو. موږ له هره پلوه په بند او ځنځیز کې یو. موږ ازادي بشپړه هېره کړې ده او پدې حال کې چې لمړني بشر اصولن اند هم نه کولو، چې ژوند دې پرته له ازادۍ څخه شونی هم وي. لمړنی بشر وژل کېده، خو په سر باندې ټکول کېدو ته نه راضی کېدلو.

څومره دی او موږ سره توپیر لرو؟ د یوه فیلسوف، بنايي هم حکیم دیوجانس، په قول، چې ډېوه یې اخیستې وه او ویل یې، چې په انسان پسې ګرځم او نه یې مومم، مقصد یې هسې انسان ؤ، چې د طبیعی ازادۍ، خپلواکۍ، زړورتیا او سرلوړۍ خاوند واوسي او بنايي هغه ایرانی عارف چې وایي: «خدای ازاد پیدا کړی یې، ازاد اوسه»، همدې ټکي ته اشاره کړې ده.

البته د ازادۍ دا روح په یوځل او په ناڅاپه توګه په بشر کې وژل شوې نه ده، بلکه په تدریج سره له منځه ولاړه او ان په وروستیو دورونو کې لکه د اور په

شان، چې باد یې ایرې له مخه پورته کړي، په بشري وګړو او ټولنو کې ځلېدله، د ببلګې په توګه وایي، چې د لوی داریوش تر مړګ او د بریا له وژل کېدو وروسته، چې ځان یې په درغلۍ سره د هغه ځای ناستی معرفي کړی ؤ، د اوو کسو مشرانو څخه، چې د سلطنت ټاکلو لپاره په نامه شوي وو، یو کس، چې ګواکې نوم یې تانس ؤ، د ایران له پاچایۍ څخه استعفاء ورکړه، خو په دې شرط چې دی بشپړ ازاد پرېږدي. دا کېسه که څه هم سمه نه وي، بیا دا رسوي، چې د وروستیو دورونو خلکو هم ازادي لا هېره کړې نه وه او د هغې په درنښت او ارزښت پوهېدل او د نن ډېرو خلکو په توګه نه وو، چې ازادي تر ټولو ارزان شی وګڼي او په اسانه سره یې له لاسه ورکړي.

له پورته خبرو څخه د لمړني بشر د وګړو په هکله داسې پایله اخلو:

۱ – ټولو کار کولو.

۲ – ټول د ټولو د کار له ابرې نه برخمن کېدل.

۳ – مینه له ټولو سره یو شانې وه او له ټولو سره یې یو ډول چلند کولو.
۴ – هېڅ چا پر بل کس لاسبرى نلرلو او ټولو ازاد ژوند تر سره کولو.
اوس یقینن پوښتی، نو ولې وضعې توپیر وکړ او څنګه شو، چې ننه نې بڼه یې وموندله؟

*****

## ۵

## ټولنیز توپیرونه څنګه رامنځ ته شول؟

زموږ په لمړنیو نیکونو کې ټولو قبیلو او نـږدې ټولو وګړو یو ډوله کار لاره او د ټولو کار ساده ؤ. خـو څـومره چې د بشـر عمـر تېـر شـو، پـه کـارونو کې لا ماهره شو او ځیرتیا یـې پکـار واچاولـه، هسې چې د ځینـو کـارونو زده کـړه یـو څـه مـودې زده کـړې او تمرین ته اړه شوه او په پایلـه کې هـر څـوک پـه هغـه کار بوخت شو، چې د هغـه لپـاره یـې څـه مـوده زیـار ایستلی ؤ.

په دې توګه د کـار ویش رامـنځ تـه شـو او د دې لامل شو، چې د بشر د کار ابره ډېره شي.

کـه چېـرې یـو کـس پخـوا د دې لپـاره چې یـوه کاسه جوړه کـړي، درې ګنټـې وخـت مصـرفولو، پـه دې دوره کې، چې د کار لوښې یې بشـپړ شـوي وو او

خپله يې هم مهارت موندلی ؤ، د کاسې جوړول يې د ببلګې په توګه په دوو ګنټو کې سرته رسول.

خو وړاندې له دې چې د کار د ابرې ډېربنت پراختيا ومومي، يوه مهمه پېښه د بشر په ژوندانه کې رامنځ ته شوه او هغه د قبيلو د کار ويش ؤ.

د بشر وګړي د ځناورو د ښکار په ترخ کې په دې ټکې پوه شول، چې کولای شي هغه ژوندي ونيسي او ګټه ترې پورته کړي. له دې امله ځينې قبيلې، چې چاپېريال يې ډېر وړ ؤ، د ځناورو په ساتلو بوخت شول او ورو ورو يې د رمو ساتل زده کړل. دا قبيلې د کرهڼيزو قبيلو په پرتله د ځينو ښېګڼو خاوندان وو: شېدې، غوښه چمړه او په ډېره کچه وړې يې لرلې او ورو ورو د تار سکڼلو او د ټوکر اوبدلو سره بلد شول. له بله پلوه له هغه ځايه، چې د بشر د کار اسباب لا بشپړ شول، بشر لا ماهره شو او ابره يې لا پورته ختلې وه، هرې قبيلې کولای شول د خپلو احتياجاتو څخه لا ډېر جنس توليد کړي. له دې کبله بزګرو او شپنو قبيلو په دې پيل وکړ، چې خپلې ابرې په خپلو کې بدلې کړي. دا موضوع لامل

شوه، چې بيا هم د ابرې کچه پورته لاړه شي او له دې ځايه يوه لويه پاېله لاس ته راغله، چې موږ يې په څرګندونې پيل کوو.

پخوا هر سړي هومره ابره توليدوله، چې د ژوند د توښې لپاره يې اړتيا وه، خو په دغه دورکې د کار ابره له دې کچې نه لا ډېره شوه. پخوا يې هېڅ ګټه نه کوله، چې د بشر يو وګړى بل وګړى د ځان په ګټه کار ته اړ کړي، ولې چې د کار ابره لږه او يوازې د هغه سړي په لګښت رسېده او له هغه نه کوم شى بل ته نه پاتې کېدو.

خو کله چې د کار ابره له دې کچې نه لا ډېره شوه، بشر پام شو، چې کېداى شي، د نورو د ابرې له ډېروالي څخه ګټه پورته کړي.

اتفاقن يوې موضوع په ټولنې کې شتون لاره، چې بشر ته يې اجازه ورکړه، چې دا ګټه پورته کول پلي کړي. هغه د قبيلو تر منځ د جګړې موضوع وه. تر هغه دمه که چېرې يوې قبيلې له بلې سره جګړه کوله، د يوې قبيلې د منځ نه تللو پرته بله پاېله يې نه لرله، خو په دغه دورکې، چې کله يوې قبيلې بله

ماتوله، د هغې وګړي يې نه وژل، بلکه د اهلي ځناورو په توګه يې په بند کې کار ته اړباسل، تر څو د ماشومانو له کار څخه يې، چې هر يو يې د کار يو ځواک ؤ، په همدې توګه ګټه پورته کړي.

په دې توګه تر ټولو لوی توپير، چې د بشر د وګړو تر منځ شتون لري، يانې د ارباب او مريه (غلام – بنده) تر منځ توپير منځ ته راغی.

ورو ورو د قبيلو تر منځ مبادله د وګړو تر منځ په مبادلې بدلون ومونډ. ورو ورو د قبيلې سپين ږيري، چې مبادله د دوی په لاس سرته رسېدله او جنګي بنديانو په دوی پورې اړه لرله، د همدې بانډېوالتياوو (امتيازونو) له لارې په نورو وګړو لاسبرې ومونډ او ورو ورو دا لاسبرې د دوی اولادونو ته په ميراث پاتې شو.

ورو ورو هغه شيان، چې د قبيلې د غړو تر منځ شريک وو(لکه کرهنيزه زمکه، د کورنۍ کور او داسې نور)، د وګړو تر منځ وويشل شول، ورو ورو هغه وګړي چې مريان يې لرل، د همدې مريانو له لارې

يې نور مريان لاس ته راوړل او د هغو په مټه په نورو لاسبري شول.

البته دې توپيرونو د بشر په منځ کې تازګي لرله او بشر لا هغه لمړنۍ ازادي او نياو (عدالت) نه ؤ هېر کړی او نه حاضرېدو، د دې او هغه لاسبری ومني او له دې کبله تل په اعتراض او پاڅون کې ؤ.

دا موضوع لامل شوه، چې د شتمنۍ خاوندان او د مريانو خاوندان خپل ځواکونه سره نږدې کړي او په دې هڅه کې شول، چې له دې پاڅونونو څخه مخنيوی وکړي.

دا کار يې واوډه (نظم ورکړ)، اوډلي ځواکونه يې جوړ کړل، قانونونه يې بنسټ کېښودل او په دې توګه يې دولت رامنځ ته کړ.

نو د سعدي وينا، چې وايي: «د ناتارو بنسټ لمړی په نړۍ کې وړوکی ؤ، هرڅوک چې راغی ورډېر يې کړل، تر څو دې ډېري ته ورسېد»، تقريبن سمون (مصداق) مومي.

تر دې وروسته په نړۍ کې تازه نظم رامنځ ته شو، هره ورځ نوی شمېر د ټولنې د بېوزلو په شمېر

ورډېر شو، هره ورځ د بشر لمړني حقونه، يانې ازداي او برابرتيا لا ډېره هېره شوه، البته بيا هم له ازدۍ او برابرتيا څخه خبرې کېدلې، خو نه د ټولو لپاره، بلکه د خاص شمېر لپاره – د بېلګې په توګه اورېدلي مو دي، چې په پخواني يونان کې د دموکراسۍ حکومت ؤ او پوهېږۍ، چې د آتن خلک د نړۍ تر نورو خلکو څخه ډېر ازاد وو، خو پام شوي به نه وای، چې دا ازادي يوازې په ځانګړې توګه د يوه ناڅيزه شمېر لپاره وه او د آتن د اوسېدونکو ګڼې شميرې پرګنې، يانې مريان د ټولنيزو حقونو څخه بشپړ بې برخې وو. ښايي اورېدلي مو نه وي، چې د آتن کسبيانو هم د ټولنيزو بانديوالتياؤ څخه کومه برخه نه لرله.

د هغو تاريخونو څخه، چې د فرانسې د ښوونځيو لپاره ليکل شوي، په يوه کې د آتن د ټولنې په هکله يې داسې ليکلي دي: د آتن ولس له هغو ټولو وګړو څخه، چې په هغه کې يې ژوند کاوه، جوړ شوی نه ؤ، بلکه د آتن عمده برخه په بنسټيزه توګه د ولس په ډله کې نه شمېرل کېدله.

مریان، چې شمېر یې له ازادو خلکو څخه خورا ډېر ؤ، د ولس برخه نه وو. چوپړ او معدنچاری، چې د سپینو زرو په معدنونو کې یې کارکولو، د سوداګرۍ د کشتیو ډېرکي مریان وو، چې هېڅ ډول حق یې په ټولنه کې نه لرلو او باید په بشپړه توګه د اربابانو د امرونو اېلي واوسي.

هېڅ داسې کور نه ؤ، چې هلته لږ تر لږه یوه کنیزه نه وي.

که چېرې د یوې کورنۍ د مریانو شمېر له اوو څخه ډېر نه وو، ویل یې چې بې وزلې ده. شتمنو خلکو کله نا کله تر سلو ډېر مریان لرل. که د یوه مهم سړي ښځه چېرې یوازې د یوه مریه سره له کوره وتلې وای، د اریانتیا وړ ګرځېدله. اربابانو یوازې مریانو ته ډوډې ورکوله، خو د هغو د لاس ټول زیار څخه یې ګټه پورته کوله.

مریانو باید په ړندو سترګو ارباب ته غاړه اېښې وای او ارباب حق لرلو، دوی شکنجه کړي. دا خبره ملنډېزه خو په همدې توګه غمجنوونکې ده، چې که چېرې دوو اربابانو په خپلو کې داوه لرله، هر یوه

کولای شول بل لوری اړباسي، چې خپل مریـه د ده په واک کې کيږدي، تـر څـو دی د شـکنجې لـه لارې لــه هغــو څخــه اقــرار واخلــي، ان ارســطو مشــهور فيلسوف ويل: «مريه يو ژوندی لوښی دی».

**له دې ځايه وپوهيږی، چې د ټولنې اقتصادي وضعيت څومره د وګړو ان د مشهورو کسانو په افکارو باندې اغېزه اچوي، چې د ببلګې په توګه د ارسطو له خولې داسې نياوګلوی ضد خبره راوځي.**

موږ ولېدل، چې د ټولنې ټول پرمختګ او ټوله شتمني، چې د بشر لاس تـه ورغلـه، د کار پايلـه وه. خـو ورو ورو دا حقيقـت هېـر شـو او هغـه وګـړو، چې شتمني يې په لاس کې ټوله شوې وه، د هغه کسانو په سپکاوي پيل وکړ، چې کار يـې کـاوه، د ببلګې په توګه کارګر د آتن په ټولنه کې دومره د سپکاوي سره مخ ؤ، چې ارسطو وايي:

«په هغه دولت کې چې اوډلي تشکيلات ولـري، نبايـد کســبيانو تــه لــه ټــولنيزو حقونــو څخــه برخــه ورکړو»!

په همدې کتاب کې یې د پخواني مصر په هکله لیکي دي، چې د پخواني مصر پرګنې بزګرو جوړولې، چې زمکو دوی پورې اړه لرله او هغه یې د پاچا، ملایانو او ساهوګانو (اشرافو) په حساب کرله.

دې بې هوبلو نېردې خپل ټول وخت په کروندو کې تېرولو؛ په هماغه ځای کې یې خوړل او غالبن په هماغه ځای کې وېده کېدل. دغو یوازې وړوکی کوډګی لاره، چې د ژوندانه هېڅ وزله پکې نه وه. کارګرانو یوازې یوه لمن اغوستله، چې د دوی ترملا پورې تړل کېده او ترګونډو پورې ځوړندېدله او ښځو یو کمیس اچولو، ماشومانو هېڅ ډول جامې نلرلې او د دوی ډوډۍ خورا ساده، معمولن سابه او د بوټو ځانګې وې.

بزګرو په هر کال کې باید د خپلې ابرې یوه برخه د پاچا ډېریو ته وړې وای. چا چې ابره ټولوله، یو شمېر ماموران یې له ځانه سره لرل، چې ډانګ یې په لاس کې نېولی ؤ، کوکې یې وهلې: «ژرشی، ابره ورکړی». که بزګر ابره نه لرله، دی به یې په زمکه

واچولو او وبه یې تړلو او د کانال خواته به یې کشولو او سر به یې ورته په اوبو کې ډوبولو.

کله به چې پاچا غوښتل کومه ماڼې جوړه کړي، یا کوم کانال اوباسي یا کوم واټ (جاده) ودان کړي، اوسېدونکونه به یې کار اخیستلو. حاکم ته به پرمان ورکړل شو او هغه په کلي کې چیغې وهلې او سبا سهار باید ټول خلک د کار ځای ته حاضر شوي وای. دوی هر یوه پنځلس ورځنې یا میاشتنې ډوډۍ، چې څو ټوټې ټېکله، څو دانې پیاز او یو څه کورخې وې، له ځانونو سره وړلې او د معمارانو او سرکارګرانو تر امر لاندې، چه په کتک وهلو کې هېڅ لنډ نه راتلل، په کار بوختېدل. بیا به بله ډله راغله د دغو ځای به یې ونېوه او دا ډله به یې بیرته لېږله، خو تر یوه کسه زیات نه راستنېدل.

وګورئ، چې بشر له هغه لمړني ژوند نه کوم برخه لیک ته رسېدلی ؤ. فکر وکړئ، چې د مصر هغه ټول اهرمونه په همدې توګه او د همدې رنځ وړونکو بزګروپه لاس جوړ شوي، خو ویاړ یې په ځانګړې توګه پلاني فرعون او یا د هغه پلاني وزیر

پورې اړه لري. ټول له دې اهرمونو څخه خبرې کوي او د هغو پاچايانو لوېښت ستايي، چې اهرمونه د دوی په وخت کې جوړ شوي دي، خو هېڅ څوک هم د هغو زرګونو کارګرانو په اړه، چې په دې اهرمونو باندې يې زيار اېستلی او خپل ځانونه يې په دې لاره کې اېښي دي، خبرې نه کوي.

هيڅ څوک دې حقيقت ته پام نه لري، چې اهرمونه د زرګونو کارګرانو د کار پايله ده، نه د مصر د فرعونانو د لوړ ځواک پايله. دا کارګران يې په خپل وخت کې سپکول او هغوی يې د ځناورو په ډله کې شمېرل. نن هم موږ د دوی د کار پايلې په وړاندې د تعظيم سر ټيټوو، خو د هغو يادښت ته کوم درنښت قايل نه يو او يوازې پر دوی باندې زورچلونکي ستايو. آيا بې انصافي نه ده؟

لږ څه د مطلب نه لېرې شوو. اوس ووينو، بشر د دې توپيرونو د له منځه وړلو لپاره، چې د ټولنيزې وضعې په پايله کې رامنځ ته شوي وو، څه هڅه وکړه؟

*****

## ۶

## قانون څنګه رامنځ ته شو؟

ژمنه مو کړې وه، چې د هغو هڅو په هکله، چې بشر د ټولنيزو توپيرونو د له منځه وړلو لپاره وکړې، خبرې وکړو، خو يوه پايله، چې کولای شو، د خپلو خبرو څخه واخلو، ناويلې پاتې ده. له دې کبله لمړی دا پايلې ذکر کوو او وروسته به هغه څه، چې ژمنه مو کړې وه، بيان کړو.

**قانون څنګه رامنځ ته شو؟**

په ګرده توګه خلک اند (تصور) کوي، په هغه موکه کې چې بشري ټولنې جوړېدې، د کام پوهان د دې لپاره چې د ټولنې د اوډنې پاسنه (مراعات) وشي، په خپلو کې سره کيناستل او د قانون په جوړولو يې پيل وکړ او خلکو هم په بشپړه رضا او مينې سره دا قانون ومانه.

آیا دا اند سم دی؟ آیا له هغه څه سره چې مو.ږ د تاریخ له مخې بیان کړل سمون خوري؟ تاسو سم ولېدل، چې د ټولنې تشکیلات د ټولنیزو اړتیاوو له امله رامنځ ته شول او پرته له دې چې د خلکو هیلې په نظر کې ونیسي، پر هغوی تحمیل شوې.

ولې ځینې د پریمانه شتمنۍ او ځواک خاوندان شول؟

د دې لپاره، چې هغو د مریانو او نورو لاس لاندو د لاس له رنځه ناوړه ګټه پورته کوله.

مریان څوک وو او له کومه شول؟

مریان جنګي بندیان وو، چې پخوا به وژل کېدل، خو په دغه دور کې یې هغوی ساتل، تر څو د دوی د لاس له رنځه ناوړه ګټه پورته کړي.

ولې پخوا په دې سوچ کې نه کېدل او ولې پخوا د مریه توب رژیم باب نه ؤ؟

د دې لپاره چې پخوا د کار افزارونو، د کار ویشلو او د کار د ابرې ډېرولو هم د چا په پرېکړې پورې اړه نه لرله او پخپله او د اړتیا له مخې رامنځ ته کېدله.

نو د ټولنې تشکیلات او «ټولنیزې اوډنې»، چې د بېلګې په توګه یو یې د ارباب او یو یې د مریه په توګه وپېژانده، د امرکوونکي او امروړونکي تر منځ اړیکې یې وټاکلې، د ټولنیز تړون له امله منځ ته رانغلل، بلکه د ټولنیزو اړتیاوو له امله رامنځ ته شوې او پر خلکو ورتحمیلې شوې.

البته وروسته قانون جوړونکي پیدا شول، چې د ټولنیزې اوډنې په هکله یې خبرې وکړې، خو د دوی خبرې عمومن د همدې ټولنیزې اوډنې پر بنسټ دي، چې پخوا یې شتون موندلی.

د بېلګې په توګه مو ولېدل، چې ارسطو د مریانو او کسبیانو په هکله کومې خبرې کړي، خو دهغه خبرې په حقیقت کې د هغه وضعیت ځرګندونه ده، چې د ده په زمانې کې یې شتون لاره.

د دې لپاره چې موضوع روښانه شي، بنه ده لا ډېره ځرګندونه وکړو:

وروسته تر دې چې د لمړني بشر ژوند ړنګ شو او ځینې په زور سره په ټولنه کې د څه باندېوالتیاوو

خاوندان شول، چې د خلکو ډېرکي له هغو څخه بې برخې وو، لازمه وه، چې د خپلو بې ځایه باندېوالتیاوو د بېلګو څخه پرته نور بنسټونه وتوګي او د خپل ځواک ستنې – د دې لپاره چې کلکې وي – د خلکو په فکر کې ځای کړي.

ورو ورو باندېوالتیاوې په ځینو کورنیو کې میراثي شوې، ورو ورو بشر خپل لمړنی ژوند هبر کړ، چې د کومو پېښو تر اغېزې لاندې له هغې ورځې نه دې ورځې ته رالوېدلی دی، ورو ورو د ټولنې بې برخو او وتلو خلکو هېر کړل، چې د دوی وضعه غیر طبیعي ده؛ ورو ورو افسانې خپرې شوې، چې دا وضعه له ازله په پښو ولاړه ده او هر څوک، هغه چې څه لري او که نه یې لري، په نیغه یې د خپل خالق نه ترلاسه کړي دي.

د بېلګې په توګه په پخواني مصر کې هغه چا چې تر ټولو ښې او ابره ورې زمکې په خپلې ولکې کې لرلې، داوه یې کوله، چې که ډولپالونکی (رب النوع) ایزس د زمکې پر مخ ژوند کاوه، هغه زمکې یې دوی ته بخښلې دي!

همدغــه افســانې وې، چــې ورو ورو د ټــولنې زورویونکــو پــه ګټــه یــې د قــانون رنــګ ځــان تــه واخیست.

له دې وروسته هیڅ مریه کولای نشول د ارباب له شکنجې نه وتښتي، هیڅ کسبي قانونن دا حق نـه لرلـو ځـان د اسـیلو(نجباوو) پـه ډلـه کـې وشـمېري. هېڅ بزګر قانونن جرأت نلرلو، چې د خپل کار بور لـه قانوني لوټمارو پټ کړي. آیا بیا هم ویـلای شـو، چې دا قانون ټولنیز تړون منځ ته راوړی دی؟

لا څرګنده بېلګه وړاندې کړو: په پخواني روم کې کاریګر قانونن خپـل کسـب پـورې تړلـي وو او کـولای یې نشول له کار څخه لاس اوباسي. کاریګرو قـانونن له خپلې مېرمنې سره په جنسي اړیکو کې خپـل واک نلرلـو او د هغـوی کسـب قـانونن میراثـي ؤ. د بزګـرو نژاد قانونن په زمکې پورې تړلی ؤ او قانونن یـې بایـد مالیې ورکړې وای او بیګار یې کړی وای.

د پخواني روم د قانونونو او دودونـو پـر بنسـټ د واده له دودونو څخه یو دا ؤ، چې د ناوې پر زلفو یـوه

سانګه (نیزه) کېږدي. پوهېږی، دا کار اصلن له کومه راغلی دی؟

د دې کار اصلي لامل دا دی، چې سانګه لمړني بشر ته د ځواکمنۍ نښه وه. لمړني بشر په همدې سانګې سره ښکار کاوه، غلیم یې واژه او ځان لپاره یې ښځه له نورو قبیلو نه تښتوله. ورو ورو دا دود له منځه لاړو، خو اغیزه یې پاتې شوه، یانې د روم دودونو او قانونونو غوښتنه کوله، چې د واده په موکه د ناوې په زلفو دې سانګه کېښودل شي، تر څو په دې نښې سره زباته شي، چې سړی پر هغې لاسبری لري او ښځه د سړي د ښکار په حکم کې ده.

نو ګورو، چې اصلی کار له منځه ولاړ، خو قانون، د هغه پایله، چې د ښځې اپلانیت له نارینه څخه دی، وساتلو.

په همدې توګه مالکیت په پخواني روم کې «مانشیپیوم» نومېده، چې د لاس له کلمې څخه راغلی، یانې هغه څه ته چې انسان لاس اچوي او خپل ځواک پر هغه تحمیلوي، له دې ځایه د

مالکیت سرچینه، چې وروسته د قانون له خوا په رسمیت پېژندل کېږي، ثرګندېږي.

نو دا چې ځینې قانون د نیاوګلوۍ و انصاف ښکارندوی بولي او اند کوي، چې قانون جوړونکو له لمړۍ ورځې څخه د نیاوګلوۍ (عدالت) او انصاف د ساتلو لپاره د قانون په جوړولو پیل کړی، سمه نه ده.

قانون په حقیقت کې د ټولنیزې وضعې استاذی دی، چې هغه وضعه هم په جبر سره او د خلکو له ارادې او هیلو څخه پرته منځ ته راغلې ده. د بېلګې په توګه د روم په ټولنه کې شتمنو خلکو، چې ځانونه یې د نورو خلکو په پرتله د حقونو خاوندان ګڼل، دغه حقونه د دوی نیکونو په لمړي سر کې په زور سره لاس ته راوړي وو او وروسته یې د قانون بڼه ورکړې وه.

د یوه فرانسوي پروفیسر په خبره: «حق لمړی د زور معلول ؤ او د قانون لامل ؤ، خو وروسته هغه په خپله د قانون معلول وګرځېدو».

البته ځينې پوهان چې پيدا شول، له هغه ځايه چې د قانونونو له اصلي سرچينې نه خبر نه وو، هڅه يې کوله، چې نياوګلوي او انصاف په زر منه سرينو سره په دې قانونو پورې ومښلوي.

د بېلګې په توګه ارسطو غوښتل زبات کړي، چې مريه توب د ټولنې ضرورت دی د ساسانيانو د زمانې يوه پوه فکر کاوه، که دا ټول توپيرونه د بشر په منځ کې نه وای، د دنيا چارو اوډنه نه موندله او اصولن دا خبرې داسې پوهانو د نړۍ د ځواکمنو د خوشمندو لپاره اختراع کولې. لازمه نه ده، ډېر لېرې لاړ شو. د فرانسې پاچا ۱۴م لويي، چې په اتلسمې پېړۍ کې يې سلطنت کولو، دومره جنګ او جګړې وکړې او ماليې يې واخيستلې، چې د فرانسې خلک بشپړ بېوزلي شول او ډېرکيو يې د ځناورو په شان ژوند کاوه. يوه ورځ پام شو، چې کارونه يې خورا بې ګټې او کرکه جن دي او پښېمانه شو او له يوه پوه سره يې د زړه خواله وکړه.

خو هغه پوه په همدې ډول دليلونو سره زباته کړه، چې د پاچا اېلان (اتباع) هر څه چې لري، پر ده پورې اړه لري او اصولن د ژوندانه همدومره وسيلې هم، چې ۱۴م لويي له خپلو اېلانو څخه د ماليې په نامه نه دې اخيستي، لوی احسان دی، چې پر دوی يې لورېدلی دی – په دې توګه ۱۴م لويي ته زباته شوه، چې هغه څه چې ده تر دې دمه له خلکو اخيستي، د ده حق دی او بيا هم حق لري، واخلي، نو خپل کار ته يې پايښنه ورکړه.

پخوا همدا ډول خبرې وې، چې د قانون بڼه يې ځان ته نېوله. د پورتنيو خبرو پايله لنډه کړو.

۱ – قانون د پوهانو د هوښيارتيا، ټونيزو تړونونو او د خلکو د هيلو پر بنسټ منځ ته نه دی راغلی، بلکه د ټولنيزو پېښنو تر اغېزو لاندې لاس ته راغلی او دهغو پېښنو استاذی ۀ.

۲ – هر قانون د نياوګلوی ښکارندوی نه دی. د دې لپاره چې د هر قانون پر ماهيت پوه شو، بايد په

هغــې وضــعې او حالــت کــې، چــې د دې قــانون د پیدایښت لامل ګرځېدلی، څېړنه وکړو.

۳ – هر قانون مقدس نه دی، په هغـه توګـه چې ډاکټر ارانـې پـه جنـایی محکمـه کې وویـل: «یـوازې هغه قانون مقدس دی، چې د خلکو د ګټو ساتندوی وي».

د نن ورځې خبرې اتـرې مـو لـږ څـه سـتونزمنې وې او موږ ونشول کولای، چې لـه دې نـه یـې سـاده بیانې کړو.

له دې کبلـه د دې وړ دي، چې د لوسـتونکو لـه خوا د ډېر ځیرتیا وړ وګرځي.

اوس به د خبرې پایښه ونیسو او ووینو، چې بشر د دې توپیرونو د حل لپاره کـومې هڅې پلـې کـړې؟

...

*****

## ۷

## څنګه د زيار ايستونکو زوښا (شيره) يې زبېښله؟

مخکې له دې چې د مريانو او د ټولنې نورو بې برخو له خوځښت نه خبرې وکړو، د هغو د ژوندانه او بې برخې توب په لا څرګندونې لاس پورې کوو، له دې کبله لمړی د مريانو او زيارايستونکو د وضعيت په هکله به خبرې وکړو.

**د مريانو ژوند:** مريه په حقيقت کې ژوند نه لرلو، ولې چې د هېڅ حقوقي شخصيت خاوند نه ؤ او پرته د خپل ارباب له ترحمه يې کولای نشول چې کورنۍ ولري. نو يقينن پوختنه کوی، چې نو مريانو بيا څرنګه مړوښي کوله؟

بايد په دې ټکي پوه شوي وی، چې کورولي د مريانو لپاره – په دې مانا چې تاسو پوهېږی – شتون نه لرلو، يانې د واده قانونونو او مقرراتو د مريانو د واده لپاره شتون نه لاره.

ارباب کولای شول، هرکله یې چې غوښتي وای، مریه له خوب غبرګۍ (همخوابه) ورکړي او هر کله یې چې غوښتل، بېرته یې ځینې اخیستله. مریه له خوب غبرګۍ ورکول یوازې د ماشومانو لاس ته راوړو لپاره وو، چې هغه یې د ارباب د بڼ مېوه ګڼله او د مریه ماشوم راوړل د ارباب د غوا خوسي راوړلو ته ورته وو!

البته کله ځیني مریان تر ځو نسلونو پورې د کورنۍ خاوندان وو، خو قانون د هغو کورنۍ په رسمیت نه پېژندله او ارباب کولای شول په هره موکه کې هغه کورنې ورانه کړي.

که غواړی د مریه توب دور د مریانو او نورو زیاراېستونکو ژوند ځان ته مجسم کړی، د عمرو عاص خبرې یاد ته راوړی. عمروعاص کله چې د مصر هېواد فتح کړ، ویې لیکل:

«دلته هسې خلک ژوند کوي، چې ګواکې د دې لپاره پیدا شوي دي، چې د ګبینو د مچیو په توګه د نورو په ګټه کار وکړي او د خپل کار له بور نه برخمن نه شي.»

د روم په مملکت کې شتمنو کسانو لـه ۱۰ څخـه تـر ۲۰۰۰۰ پـورې مریـان لـرل او د ځینـو د مریـانو شمېر هومره ؤ، چې کولای یې شول یو لښکر پـه لار رهي کړي! چا به چې یوازې درې مریان لـرل بېـوزلی ګڼل کېده!

موږ مخکې څرګنده کړل، چې له مریانو سره یـې څرنګه چلند کولو، خـو اوس څـو بېلګې پـر هغـه څـه چې ویلي مو دي، ورزیاتوو:

رومیانو یو ډول وحشي کبـانو تـه خـورا درنښـت کاوه. کېسه کوي، چې د روم له شتمنو څخه یوه یـو ډنډ لرلو، چې دغه وحشي کبانو تـه یـې پـه هغـه کې وده ورکوله او هرکله به چې د ده یوه مریه کوم لوښی د غفلت له مخې مات کړ، حکم به یې کاوه، چې هغه په دې ډنډ کې واچـوي، تـر څـو د هغـه وحشي کـب خواړه شي.

د روم یو مشهور فیلسوف د اربابـانو کلـک نیـوکه داسې څرګندوي: «همدا چې مریـه ټوخی یـا پرنجـی وکـړي، همـدا چـې کـونجۍ پـه غـږ سـره پـه ځمکـه وغورځـوي، پـه حقیقـت کې غوسـه ناکـه کېـږو. کـه

مريه يو څه په جګ غږ ځواب ووايي، که څېره يې د بدچلند نښې ولري، حق لرو، په متروکه يې ووهو او غالبن هم ډېرې کلکې متروکې وهو او يو غړې او يا غابش يې ماتوو».

د روم له لويو پوهانو څخه يو اپيکتت ؤ، چې مريه نړۍ ته راغلی ؤ، له هغه سره يې همدغه بدچلندونه وکړل او پښه يې ورماته کړې وه!

که کوم ارباب له خپل مريه څخه ناراضه شوی وای، په شپو يې هغه په تورو کوهيانو کې بندي کاوه، په ورځو يې درانده زنځيرونه په غاړه کې وراچول او کار ته يې اړباسلو او غالبن يې د دې مريانو مخ په سرې اوسپنې داغلو.

په پخوانيو زمانو کې يې ميخانيکي ژرندې نلرلې او دانې يې په لاسې ژرندې، چې د مريانو په لاسو تاوېدې، وړه کول. دا کار تر ټولو ګران ؤ او عمومن د دې لپاره چې مريانو ته سزا ورکړي، دې کار ته يې اړکول. په حقيقت کې د ژرندې کار روميانو ته د نن ورځې ګرانو کارونو په دود ؤ. د روم يو شاعر د دې ژرندو په بيان کې وايي: «هلته تياره ورځې مريان،

چې ډوډۍ يې د وړو د ذرو ګرد دی، ژاړي، هلته د متروکو او زنځيرونو په خپلوکې د لګېدو غبږ په هواکې تاوېږي».

د روم يو بل ليکوال د ژرندې منځ داسې ستايي: «خدايه! څه بې وزلي خلک دی! پوټکې يې د مړي رنګ لري او د متروکو وهلو خاپ په هغه لېدل کېږي... دوی يوازې د کميس ټوټې پر ځان لري، دوی يې په داغلو سره په نبنه کړي، سرونه يې خريلي دي، پښې يې په کړيوکې اېښودل شوي، ځانونه يې د اور له تاوه له جوړښته لوېدلي، بانه يې لوګی له منځه وړي، له سره تر پښو د وړو په دوړو کې ډوب دي».

اند مه کوی، چې خلک له دې چلند سره مخالف وو. هغو حقيقت هومره هېر کړی ؤ، چې خيال يې کاوه، دا چلند خورا نياويز دی.

د روم يو شاعر يوه مېرمن، چې خپل مريه باندې کرجنه شوه، داسې ستايي:

« - دا مريه په دار وځړوی!

- مګر څه ګناه یې کړې، چې داسې یې وکړوو؟
- بی شعوره! مګر مریه هم سړی دی؟ ومې منله، چې څه یې کړي نه وي، زه غواړم په دار یې وځړوم، زه امر کوم، زما پرېکړه باید دلیل واوسي».

د رومیانو دا لید د مریانو په اړوند، وروسته له هغه څخه هم چې مذهب یې بدلون وموند، پاتې شو. هسې چې یوه پېړۍ وروسته د مسیح له میلاده، کله به چې یو ارباب په کور کې وژل کېده، د هغه ټول مریان یې وژل او کله یې چې غوښتل دا قانون له منځه یوسي، یوه لوی فیلسوف مخالفت وکړ او د هغه قانون څخه په ملاتړ کې یې خبرې وکړې.

*****

# ۸

## ګلادیاتوران

د رومیانو له ملي نندارو څخه یو ګلادیاتوران وو. هم هغسې چې موږ نن تیاتر ته ځو او هنرمندان زموږ لپاره ننداري جوړوي، رومیانو هم ګرد او لوی میدانونه جوړول، چې ګېرچاپېره یې د ناستي لپاره ځایونه وو او په منځ کې یې یو پراخ ډګر شتون لاره.

په دې ډګرونو کې یې مریان اړباسل، چې په خپلو کې او یا له وحشي ځناورو سره وجنګېږي. دې مریانو ته یې ګلادیاتور ویل. دې ببوزلو د یو بل وینې تویولې او یا د وحشي ځناورو په لاس به ریتې ریتې کېدل او رومیانو له دې ننداري نه خوند اخیستلو.

رومیانو د سزار په زمانه کې توانېدلي وو، چې په یو ځل په یوې موکې کې ۳۲۰ جوړې ګلادیاتوران په جنګ واچوي. «اوګوس» د روم امپراطور د خپل ژوندانه په ترخ کې ۱۰۰۰۰ جوړې ګلادیاتوران په

خپلو کې جګړې تـه اړ کـړل. «تـراژن» در روم بـل امپراطور همدغه شـمېر یـوازې د ۴ میاشـتو پـه تـرڅ کې په خپلو کې په جنګ واچول.

هغه مریه به چې په جګړې کې مـاتې خوړلـه، پـه هماغه میدان کې یې سـر تـرې پـرې کولـو. عمـومن محکومان به یې دې کار ته اړ کول، خو غالبن مریان او جنګي بندیان وو، چې دې کار ته بـه یـې اړ باسـل، هسې چې هـر کلـه بـه د روم دولـت بـرې وموند، د ګلادیـاتورانو لـویې ډلې بـه د وهلـو ټکولـو ډګـر کې وشېندلې شوې.

د روم یو ویاند، چې زموږ د تېرو زمانو د «افکارو ودې» ویانـدانو تـه ورتـه ؤ، پـه خپلې یـوې وینـا کې امپراطـور سـتایي، چـې د بنـدی «وحشـیانو» ټـول لښکر یې د ډګر مـنځ تـه راوسـتی او د غلیمـانو ماتـه یې د ولس د تفریح وزله جوړه کړې ده. «کـوم بـری کېدای شي له دې نه لا لوی او لا ښکلی وي؟»

دا ننداره نه یوازې د روم په ښار کې وې، بلکـه د ایټالیا په ټولو ښارونو کې تکرارېدلې.

*****

اې لوستونکيه، آيا نه غمجن کيږې؟

آيا فکر نه کوې، چې دې بېوزلي بشر څومره ځور ګاللی دی! برسېره پر دې د روم له لوېښت او وياړونو ډېر اورېدلي او ښايي د خپل عمر ارزښتناکه برخه دې د روم د امپراطورانو د تاريخ په زده کړه تېر کړې وي، خو کېدونکې يې ګڼو، چې ښايي له هغه څه څخه، چې مورږ د تاريخ له څنډو او څنګونو څخه راټول کړي دي، تا ته څه نه وي ويلي، کېدای شي د روم له دغو اوسېدونکو د ژوندانه له بڼې تر اوسه ناخبره وې. ولې؟ د دې لپاره چې له مريانو څخه عمومن د پيسو او زور لپاره کار اخلي او تاريخ يوازې د زورويونکو او د هغوی جنايتونو لپاره جوړوي. هسې مورخ لږ پيدا کيږي، چې د ومره جنايتونو په هکله، چې د سل هاؤ زره بيوزلو خلکو د ژوندانه ننداره يې جوړوله، څرګندونه وکړي.

دلته له دومره څېرلو او وحشت څخه خبرې نه کوي، خو هلته چې ځورېدلي خلک ځان خوځوي او د ناتار او ځور زنځيزونو د ماتولو لپاره لاس په کړنه پورې کوي او خپلو څو زره کلنو غليمانو ته، له هغه

سزا شخه چې دوی یې وړ دي، یو په زړمه سزا ورکوي، د مورخینو چیغې پورته کېږي او د خپلې افسانو جوړولو بشپړ استعداد د دې «ځناورو» د ځناورتیا او شېرنتوب د انځورولو لپاره په کار اچوي!

دا ډول مورخان زموږ له پامه، چې د بشر د حقیقي تاریخ زده کړه غواړو، کوم ارزښت نلري او موږ باید د هغو درواغجنې انځورونې د تاریخ له پاڼو لېرې کړو.

یوازې مریان د روم په هېواد کې بدمرغه نه وو. د روم هېواد اوسېدونکي اصولن په دوو برخو ویشل کېدل، یو هغوی، چې ځانونه یې د ډېر لوړ نژاد شخه ګڼل او نوم یې «پاتریسین» ؤ، بل هغوی، چې ویل یې د لا ټیټ نژاد شخه دي او «پلبین» نومېدل. یوازې پاتریسینانو کولای شول، دولتي چارې ولري، یوازې دوی کولای شول مذهبي دودونه ترسره کړي، یوازې دوی د سنا مجلس جوړولو.

کله چې بشپړه دولتي چارې، د قانون جوړولو بشپړه دستګاه او ټول مذهبي دودونه د پاتریسینانو په لاس کې وو، په ښه توګه کولای شو اټکل وکړو،

چې دولتي دستګاه يوازې د پاتريسينانو په ګټه تاوېده، قانون د دوی په ګټه جوړېده، مذهب يوازې د دوی په ګټه حکم کولو، دوی زور درلوده او له دې کبله هم دولت، قانون او مذهب د دوی مال ؤ.

پلبينان عمومن بېوزلي خلک وو، چې عمومن په بزګرۍ او کسب بوخت وو او هرکله به چې کومه جګړه پېښېدله، دوی به يې د جنګ ډګر ته استول. دا بېوزلي غالبن د نيشتمنۍ (فقر) او بېوزلۍ له زوره اړ کېدل، د پيسو له خاوندانو څخه پور واخلي، خو که د پور د پرې کولو موکه به چې راورسېده او پوروړي کولای نشول خپل پور پرې کړي، غوښتونکي حق لرلو د «قانون سره سم» هغه خپل مريه کړي.

په هر هېواد کې چې قانون د زورويوونکو خلکو په ګټه جوړ شي، همدا ډول زلنديزه او ملا ماتوونکي قانونونه به پر بېوزلي ولس بار شي او اريانتيا په دې کې ده، چې زورويوونکي تل تمه لري، چې دا ډول قانونونه ولس مقدس وګڼي او له هغو څخه اطاعت وکړي.

پلبينانو – يانې د ټولنې بې برخو – د خلکو د وګړو ډېرکی جوړولو او هر هېواد چې د خلکو ډېرکی يې تر فشار لاندې وي، هسې ديګ ته ورته وي، چې د اور پر سر يې کېږدي. البته چې دا ديګ به تل د پاڅون او خوټېدلو په حال کې وي..

بدمرغه خلک هم تل د ځان د خلاصون لپاره په هڅو او اعتراض او پاڅون کې دي.

کله په ژوره توګه پام شوي ياست، چې ولې د سماوار په مخ يو وړوکی سوری جوړوي؟ دا سوری د دې لپاره دی، چې هرکله که د سماوار جوش ډېر شي او بخار وکړي، هغه سوری خلاص کړي، تر څو يو څه بخار بهر ووځي او که نه سماوار به چاود کړي.

په ټولنې کې هم په همدې توګه دي. کله چې خلک د ناتارو له اوره په خوټېدو راځي او شوني کېږي، چې په يوځل سرغړونه (طغيان) او پاڅون وکړي او د ټولنې ناتاريزه قانون مات کړي، زلند خلک، چې تل په خپلو چارو کې احتياط کوي، د خلکو د احساساتو لپاره د وتلو يوه لار خلاصوي، تر

ځو په دې توګه د خلکو د سر پورته کولو فشار لږ شي.
د روم زورویوونکو هم همدا کار کولو. هرکله به چې د پلبینانو اعتراض زور واخیست او چاره به یې هڅوکي ته ورسېده، پاتریسنانو، د دې لپاره چې په دې اور یې اوبه شېندلې وي، په نذر او نیاز به یې پیل وکړ او ان ځینې پوروړي به یې د مریه توب له بنده ازاد کړل.
د هغو وضعیت او تنګې سم زموږ د تولنې وږیا خوړونکو په دود وې، چې کله نا کله په داسې چارو لاس پورې کوي، د خیر ښېګڼې تولنې جوړوي او وریژې ویشي.
البته د پاتریسینانو دا مهربانې لنډپایې وې او همدا چې د خلکو د پاخون فشار به لږ شو، دوی خپل ځنډن چلند په مخه وړلو.
له زېږیزه وړاندې په ۲۶۰م کال کې یوه ورځ یو بېوزلی پوروړی د خپل پورغوښتونکي له کوره وتښتېدو او د روم میدان منځ ته راغی. دې بېوزلي ته یې هومره شکنجه او ځور ورکړی ؤ، چې بشپړ

ځان يې په زخمونو بانـدې پوښـل شـوی ؤ. خلـک د دې ننداري له کتلو څخه راوپارېدل او خوځښت يـې وکړ او وسله يې اوچته کړه او غرونو ته يې کډه وکړه. د روم دولت له هغو سره جګړه وکړه او په پای کې د دې لپاره چې هغوی کرار کـړي، اړ شـو هغـه پـوروړی ازاد کړي او د پلبينانو ځينې غوښتنې ومني.

پلبينانو داسې ډېر پاڅونونه وکړل او ورځ په ورځ لا زړه ور شول، هسې چې پاتريسينانو احکل وکړ، چې وضعيت د دوی لپاره خطريزه دی.

کېسـه کـوي، چـې يـوه ورځ (لـه زېږيـز نـه دوې پېړې وړاندې) يو ارباب د مريانو پـه لاس ووژل شـو. کله چې دا پېښه خپره شوه، يـوه ليکـوال وويـل: «دا هسې خطر دی، چې مـوږ ټـول تهديـدوي»، مقصـد يـې دا ؤ، چـې «نـن د هغـه وار ؤ، سـبا بـه زمـوږ وار وي». دې ليکوال حق لاره، ولې هرکله چې د خلکـو پرګنې د يـو مـوټې زلنـدو تـر فشـار لانـدې راشـي، لـه لاسه چې ټکونې خوري، اند کوي، چې دا زلنـدي پـه شخصـي توګـه هـم د ځـواک او زور خاونـدان دي او روږدن (عادت) نه پورته پياوړتياوې لري. خـو همـدا

چې له مظلومانو څخه يو کس جرأت وکړي او ښکاره کړي، چې زلند کومه ځانګړې پياوړتيا د مظلوم په پرتله نلري، دا خبره د نورو مظلومانو د زړه ورتيا لامل ګرځي. ورو ورو هغوی هم په هغه کې کېږي، چې دا خبره وازمويي. له همدې کبله هوښيار خلک به چې کله ځواکمن شول، خپل غليمان به يې په ځانګړې ټوګه د خلکو په مخکې له منځه وړل، تر څو ولس ووينې، چې دغوی له عادي کسانو څخه پورته نه دي او بلکه له هغو نه هم لا ضعيفه دي.

په هره توګه هغه پېښو چې وروسته رامنځ ته شوې، زباته کړه، چې هغه ليکوال بشپړ حق درلودلو. مريان ورځ په ورځ لا زړور شول او خپل اعتراضونه او پاڅونونه يې زيات کړل او هر ځل پاتريسينان اړ وو، د دوی ځينې غوښتنې ومنې.

وروستۍ او تر ټولو کلکه جګړه، چې مريانو د خپل خلاصون لپاره پيل کړه، د سپارتاکوس جنګ ؤ، چې له زېږېزه وړاندې ۷۳م څخه تر ۷۱مه پورې يې بهير وموند.

## ۹

## د سپارتاکوس جګړه

تاسو د ډېرو لښکر کښو او نـړۍ نېوونکـو نومونـه اورېدلي، چې هېوادونـه يـې د خپلـو اسـونو تـر پلونـو لاندې وران کـړل، ښـځې او نارينـه او زاړه او ځوانـان يـې پـه خـاورو او وينـو کـې وغـزول، لـه ککريـو يـې منارونه جوړ کړل او بشري تمدن ته يې بې شـمېره زيانونه ورسول، خو اند نـه کـوم، چـې د سـپارتاکوس نوم مو اورېدلی وي.

سپارتاکوس د هغه کارونو په شـهادت سـره چـې کړي يې دي، له سترو مشرانو څخه ؤ او د روم لـوی مشران يې عاجز کړل. د ده کارونه له هغه ځايه چې د هېوادونو نېولو لپاره او زور ويلو لپاره نه وو او بلکه غوښتل يې، چې خلک د زور له بنـده خـلاص کـړي، نوم يې د ډېرو مورخانو له قلمه لوېدلی دی، ولې چې مورخـان عمـومن د خپلـې زمـانې د دولـت جيـره

خوړونکي دي او تل خپله ژبه او قلم د زلند د ستاينو لپاره وقفوي.

خو تاسو چې له ناتاره ببزار ياست، ډېر پر ځای دی، چې د سپارتاکوس نوم زده کړی او د ده د جګړو کېسې مغزو ته وسپارې، په ځانګړې توګه چې کولای شی پرتمينې پايلې له هغو څخه لاس ته راوړی.

تر زيږيزه وړاندې ۷۳م کال کې يې ۲۰۰ کسه ګلادياتوران د کاپو ښار خواته، چې د روم له ښارونو څخه ؤ، ببول، تر څو هغوی په ډګر کې د يو بل وژلو ته اړ کړي. دغه کسان چې له خپل برخه ليک څخه دردېدلي وو، له دې سپکاويو څخه چې دوی ته کېدل، خورا په تنګ شوي وو او په خپلو کې يې پرېکړه وکړه، چې يوبل ته د وروروليۍ لاس ورکړي او د خپل وضعيت لپاره هڅه وکړي.

د هغو په منځ يو کس د سپارتاکوس په نامه ؤ، چې ډېر هوښيار او د ځوانۍ روح او غښتلی ځواک يې لاره. سپارتاکوس، چې پخوا يې د ايټاليا په

شمال کې شپنتیا کوله، کله هم چې د مریه توب په زنځیر کې ښکېل شو، ازادي یې له یاده ونه اېستله او خپل هم زنځیري یې ازادۍ ته ولمسول. سپارتاکوس ښکاره کړه، چې د بشر وګړي په خپلو کې برابر دي او دا ټول توپیرونه چې په دوی کې پیدا شوي، ټولنیز وضعیت یې لامل دی. که مریان همت وکړي، کولای شي دې ټولنیز وضعیت ته بدلون ورکړي او ځانونه د بندګۍ له بنده وباسي. د سپارتاکوس خبرو په ملګرو باندې اغېزه وکړه او سپارتاکوس وکولای شول د هغو له ۷۶ کسانو سره وتښتي.

د سپارتاکوس د ټولو ملګرو لاسونه تش وو، خو خپل لاسونه یې په لاره کې ډک کړل او د وسلې یو کاروان یې لوټ کړ او کله چې د کاپو د ښار لښکر غوښتل چې د هغو مخنیوی وکړي، هغوی یې بې وسلې کړل او په پای کې یې د وزو غره سر ته کډه وکړه.

د روم په ښار کې پاتریسینان په اندېښنې کې ولوېدل او د سپارتاکوس د مخنیوي لپاره یې یو

۳۰۰۰ کسیزه لښکر ولېږلو، خو سپارتاکوس هغو ته ماتې ورکړه. دې کار یوه ښه پایله پیدا کړه او هغه دا وه، چې مریان پوه شول، چې یو ځواکمن ملاتړ یې موندلی دی او ډلې ډلې د غره په لور وتښتول او له سپارتاکوس سره یوځای شول.

بیا هم دوه ځلې نورې دوې ۲۰۰۰ کسیزې ډلې د سپارتاکوس جګړې ته ولېږدول شوې، خو سپارتاکوس هغه بشپړه ډېرې وړې کړې او له منځه یې یووړې.

هغه څه چې په سپارتاکوس کې د ستایلو وړ دي، دا دي، چې دی له دې بریاوو څخه مست نه شو او خپل عقل یې له لاسه ورنکړ او له غره نه رابښکته نشو. یوازې کله کله له غره نه رابښکته کېدو او ښارونه یې لوټول او د ټولنې مریان او نور بې برخې یې د ځان خوا ته جلبول.

خو یو شی د سپارتاکوس د ځورېدو لامل شو او هغه دا وو، چې له هغه ځایه چې د ده سرتېري ډېر شول، هغو ته د ډوډۍ رسول خورا ګران شول.

سپارتاکوس غوښتل چې له هغه اندېښنې څخه چې رومیانو ته ورپه برخه شوې وه، ګټه پورته کړي او خپل ملګري د آلپ له غرونو څه تېر کړي او د روم د امپراطورۍ له حدود څخه یې بهر ته وباسي، تر څو هغوی ازاد شي، خو له بده مرغه ټولو مریانو د ده هوښیاري نلرله او نه پوهېدل، چې د دوی وضعیت نشی کولای تر ډېرې اوږدې مودې پورې پایښت ومومي او هر څه ژر تر ژره باید له موکې نه ګټه پورته کړي، د بنسټیزې چارې په فکر کې واوسي.

په دې موکه کې رومیانو څو ګڼ شمېرې ډلې، چې یوه ډله یې په یوازې توګه له ۱۰،۰۰۰ تنو څخه جوړه شوې وه، د رومې سرېیو په مشرۍ د سپارتاکوس جګړې ته ولېږل. سپارتاکوس دغه سرتېري او مشران، چې په نړۍ کې په جنګېدو نامتو وو، بشپړ مات کړل او په ښه توګه بریالی شو.

بیا دلته د پام وړ موضوع دا ده، چې سپارتاکوس تېر وختونه او هغه بلاوې، چې د مریانو پر سر یې

رواسـتلې، هېـرې نکـړې او د دې پـر ځـاى چـې د جګړې بندیانو سرونه هم هلتـه پـه میـدان کـې پـرې کړي، د هغو له منځه یې ځلور سوه کسـه وټاکـل او امـر یـې وکـړ، چـې هغـه د «لـوړ نـژاد» خلـک د ګلادیاتورانو په څېر په ډګر کې پخپلو کې په جنګ بوخت شي، تر څو د زور خوند وڅکي او هغو او نـورو خلکو ته زباته شي، چې هغه څه چې خلک خـواروي، هغه یوازې زور دى او مریه له دې کبلـه چـې زور یـې پر سر ولاړ دى، خوار دى، نـه لـه دې کبلـه چـې نـوم یـې مریـه دى. زور د مریـه لـه سـره پورتـه کـړى او ووینى، چې هغه هم لکه د نورو هسې کس دى او کـه نور هم د ده په شان په زور اخته شي، هم هـومره بـه خوار شي.

سپارتاکوس یـوه بلـه ۱۰،۰۰۰ کسـیزه ډلـه ماتـه کړه. خو د دې پرځاى چې پرمختګ وکړي، یـو ځـل پـه شـا شـو، ولـې چـې د ښـارونو خلکـو لـه ده سـره موافقت نه کاوه او سپارتاکوس د خپل لښکر د خوړو لـه چمتـو کولـو څخـه پـاتې راتلـو. سـپارتاکوس د

سهېل(جنوب) په لور لاړو، تر څو د هغه ښارونه لـه خوړو ډکه، چې پروسـېرکال يـې فـتح کـړي وو، ګټـه پورتــه کــړي. دا خبــر روم تــه ورســېدو او ټــول پــه خوځېـدو راغلـل او بيـا يــې لښـکر ولېـږلـو، چــې د ســپارټاکوس د شــاته کېــدو مخنيــوی وکــړي، خــو سپارټاکوس په هـېڅ ډول زيـانمن نشـو او ځـان يـې، هغه ځای ته چې غوښتل يې، ورساوه.

ورو ورو د ســپارټاکوس بريـاؤو پــه روم کـې بــې هانده (حده) ترهورتيا رامنځ تـه کـړه او پـه ځـانګړې توګه د شتمنو موقعيت داسې د خطـر سـره مخـامخ شو، چې مصـمم شـول، چـې هـر ځنګـه کېـږي، د ده ولې وباسي. البته هـر څـوک چـې ډېـر شـتمن ؤ او لا ډېـر مريـان يــې لـرل، د سـپارټاکوس لــه جنســه ډېـر ډاربدو او ګټو يې لا ډېره غوښتنه کوله، چې د سپارټا کوس غم وشکيږي. لـه دې کبلـه روميـانو د روم پـه اوسېدونکو کې تر ټولو نه بډايو له ډلې نـه يـو کـس د دې دندې لپاره ومونډ، چې نوم يې کراسوس ؤ.

کراسوس، چې د اشکانیانو په زمانه کې له ایران سره هم ځینې جګړې کړې وې، نږدې ۱/ ۸۰۰/ ۰۰۰ دیناره (رومي پیسې) شتمني یې لرله او خپله ډېره شتمني یې د داخلي جګړو او د روم د اوسېدونکو له وژلو څخه لاس ته راوړې وې. دا کس خورا کبرجن او د هر ډول احساس څخه تش ؤ.

تر زېرېزه مخکې د ۷۲م کال په مني کې یې کراسوس ته ۱۰ لژبونه (هر لژبون نږدې ۶۰۰۰ کسه کېږي) ورکړل، چې سپارتاکوس ته ماتې ورکړي، خو سپارتاکوس، چې خپلو ټولو کسانو ته خواړه رسولای نشول، ناچاره شو، چې دوی په دوو برخو وویشي او له همدې کبله یې ځواکونه کمزوري شول. د سپارتاکوس د لښکر یوې ډلې، چې ۱۰،۰۰۰ کسان وو، ماته وخوړه، ۶۰۰۰ کسان یې ووژل شول او ۹۰۰ کسان یې د رومیانو په لاس کې بندیوان پاتې شول. نورې ډلې یې هم په شا شوې.

سپارتاکوس، چې ځان له دې مهمې پېښې سره مخ وکتو، پرېکړه یې وکړه، چې د ایټالیا په سهېل کې د سیسلي جزیرې ته لاړ شي، ولې چې د سیسلي

جزیرې ډېر غنم لرل، هسې چې هغه ځای ته یې د «روم د غنمو جزیره» ویله او خلک یې تل له پاڅون لپاره چمتو وو.

سپارتاکوس خپله پرېکړه پلې کړه او په بېړۍ کې سپور شو، خو د سیسلي بېړیو، چې دی یې وړلو، خپل هوډ مات کړ او د هغه ځای حاکم دولت ته خوشمندو لپاره په تنګیو کې په دفاع اخته شو. له دې کبله سپارتاکوس اړ شو، د ایټالیا جزیرې څنډو ته پناه وېسي. کراسوس چټک له لارې راورسېدو او دی یې کلابند کړ.

ژمی هم راورسېدو او خواړه نه موندونکي شول، هسې چې که سپارتاکوس له محاصرې څخه راوتی نه وای، له منځه تللو، له دې کبله سپارتاکوس په هڅه کې شو، چې له کراسوس سره په خبرو شي او سوله وکړي. خو دا کار شونی نه ؤ، ولې چې لمړی د اربابانو د ګټو په ضد ؤ او هغو غوښتل، هر څنګه چې کېږي، سپارتاکوس او دا یاغي مریان له منځه یووړي او داسې ښکاره کړي، چې هر څوک که وغواړي چې ځان ازاد کړي، له وژل کېدو پرته بله

پایله نه لري. دوهم کراسوس غوښتل چې د سپارتاکوس په ماتولو سره یو نوی ویاړ لاس ته راوړي او ځان لا لوی کړي. په پای کې د سپارتاکوس وړاندیز رد شو او په محاصرې کې پاتې شو.

خو سپارتاکوس دلته یوه لویه هوښیاري وکاروله، یوه شپه چې واورې ورېدلې او هوا توپاني وه، یوازې د خپلو ملګرو له درو څخه یوې برخې سره، پرته له دې چې نور خبر شي، هغه ډنډ چې د ده د لښکر نه یې چاپېره کنلی ؤ، په یوه ځای کې د خاورو او بوټو سره ډک کړ، له هغه نه تېر شو او ځان یې له محاصرې نه بهر ووېسته. کراسوس ناچاره شو کلابندي خوشې کړي او د سپارتاکوس په تعقیب بوخت شي. په دې چل سره هم سپارتاکوس خلاص شو او هم نور ملګري یې.

کراسوس هلو ځلو کې شو او اړ شو له روم څخه مرسته وغواړي. هغو هم پمپه لوی مشر د ده مرستې ته ورولېږه. بیا هم څو ځلې د سپارتاکوس او کراسوس ډلو تر منځ اخ او ډپ پېښ شو او په هغه

جګړې کې، چې د بروتیوم په غرونو کې پېښ شو، لمړی د کراسوس پوځ ماتې وخوړه، خو له جنګه لا څه نه وو تېر شوي، چې سپارتاکوس له ورانه نه زخم وخوړو. سپارتاکوس په زنګانو ولوېده او تر وروستي دمه په زنګانو روان ؤ او جنګېدلو، هسې چې ونه توانېدل د ده مړی د نور مړو له منځه، چې یو د بل په سر پراته وو، ومومي.

په دې جګړه کې زر کسه رومیان، یانې د «لوړ نژاد» زر کسه د مریانو په توره په خاورو کې پرېوتل، خو په پای کې جنګ د مریانو له ماتې سره پای ته ورسېدو او کراسوس پرته له کوم رحمه هغه ټول ووژل او د بندیانو په هکله یې، چې شمېر یې تر ۶۰۰۰ ډېر ؤ، امر وکړ، چې د کاپو له ښاره تر رومه پورې د ده د لارې په سر په صلیبونو باندې مصلوب کړي!

د سپارتاکوس یوې ډلې، چې له ۵۰۰۰ کسانو نه جوړه شوې وه، هڅه وکړه، چې ځان شمال لور ته ورسوي او د روم له سرحده ووځي، خو پمپه د روم

مشر له شماله راورسېدو او دوی ته یې ماتې ورکړه او تر وروستي کسه پورې یې عام وژنه وکړه او په دې توګه هغه هم د دې وژلو له لارې یو ویاړ تر لاسه کړ!

سپارتاکوس او یاران یې په پای کې ووژل شول، خو په دې خوځښت سره یې ښکاره کړل، چې مریان له هوښیارۍ او نبوغ څخه بې برخې نه دي او که په خپلو کې د یووالي لاس سره ورکړي، وړوونکی ځواک به ولري.

د سپارتاکوس د خوځښت اهمیت په دې کې لنډوو، چې د ده د ماتولو لپاره هومره رومي لښکر ته اړه پیدا شوه، چې سزار د روم امپراطور په اتو کلو کې د اوسنۍ فرانسې د فتحې لپاره کارولی ؤ! او حال داچې د سپارتاکوس خوځښت له دوو کلو نه ډېر و نه غزېدو او د زېرېز نه مخکې ۷۱م کال کې له منځ لاړو.

له دې نه وروسته د روم دولت مریانو باندې بندیز ولګاوه، چې نور وسله ولری او په دې موضوع کې یې هومره کلک نېونه وکړه، چې وایې، یوه ورځ

یو شپون یې په دې ګناه، چې یو خنځیر یې په سانګې وژلی ؤ، وواژه!

له دې تاریخه څه پایله اخلو؟

۱ –د ټولنې بې برخي، چې ډېرکي دي، که په خپلو کې د یووالي لاس ورکړي او ځان بسندنې ته چمتو واوسي، داسې ځواک جوړوی شي، چې د زور دستګاه ونړوي. د سپارتاکوس جګړه له دې کبله وحشتناکه وه، چې هغو بېوزلو، چې دغه جنګ یې پیل کړی ؤ، د زړه له کومي د دې جګړې لپاره چمتو شوي وو او له هغه ځایه چې څه شی یې نلرل، چې په دې جګړې کې یې له لاسه ورکړي، بې پروا له غلیم سره یې جګړه کوله.

۲ – هرکله چې د ټولنې بې برخي د زور دستګاه د ماتولو په هڅه کې شي، باید له مخکې یوه نقشه، زده کړې او ټاکلی تشکیلات ولري، ګوندې خپل بری پای ته نشي رسولی. د سپارتاکوس پاڅون هم له همدې کبله پرېکړنده پایلې ته ونه رسېد، چې د ټولنې یو شمېر بې برخي د فشار پر ضد د طبیعی عکس العمل له امله پرته له مخکېنې نقشې څخه په

خپلو کې سره ټول شوي وو او که څه هم سربندنه يې لرله، خو د پرېکړنده پايلې لاس ته راوړلو لـه دود سره بلد نه وو.

۳ – د ټولنې زورويوونکي، څومره ځواک هم چې ولري، د ټولنې بې برخو د ټکولو لپاره يـې کـاروی او له هېڅ چـل، ټګۍ او نـاځوانۍ څخـه پـروا نـه لـري او وروســته لــه هغــه چــې بريــالي شــول، د دې ازادۍ غوښتونکو خلکو سره په بشپړه ځناورتيـا او قسـاوت چلند کوي.

هرکله چې د ټولنې بـې برخـي د زور پـه وړانـدې لاس په مقاومت پورې کوي، بايد په بشپړه توګه دې تـه پـام وي، چې کـه مـاتې وخـوري، پرتـه لـه بشـپړه ښېوزلۍ او يا مرګ څخه بله لار ورله نه پـاتې کېـږي او له دې کبله نو په خپله پرېکړه کې بايد تم نشي او لـه هېڅ راز سربندنې څخه ډډه ونکړي.

يـوه ورځ مـې خپـل يـوه دوسـت تـه همـدا ټکـې څرګندولو، چې د نـړۍ زورويـوونکي د دې لپـاره چـې خپله موخه پر مخه کړي، له هېڅ ناځوانۍ څخه ډډه کې وسيلې او تزويز نـه بـاک نلـري. دی مخـالف ؤ. ومـې

ويل خورا رنه بيلګه تا ته راوړم. آيا منې چې لوی کوروش د نړۍ تر ټولو څخه ځوانمرده نړۍ نېونکی ؤ. دې کس يوه ورځ د ځوانی په ورځو کې له پلاره وپوښتل: «پلاره، د دې لپاره چې څوک په غليم بريالی شي، څه شيان لازم دي؟» «... دې موخې ته رسېدو لپاره بايد سړی موکې ته سترګې وغړوي، خپل ځواک پټ کړي، دروغجن وي، غولونه وکړي، غلا وکړي، لوټ وکړي او په هر څه کې په غليم باندې بر شي».

د ټولنې د بې برخو ډېر خوځښتونه له همدې کبله، چې دوی خپل غليمان نه پېژندل او د هغو دغه فورمول يې هېرولو او په هغو يې باور کولو، له منځه ولاړل. خو د ټولنې بې برخي دا فورمولونه نبايد هېر کړي.

*****

## ۱۰

## د مریه بدلون په سرف باندې

مریانو د خوځښتون له امله وروسته له هرې څه مودې څخه نوې باندېوالتیاوې لاس ته راوړې او ازدۍ ته نږدې کېدل، خو څو نوره شیان هم وو، چې د دوی په ازادۍ کې یې عمده اغېزه لرله:

د روم دولت ډېر هېوادونه تر خپلې ولکې لاندې راوستي وو او د هغو ټولو شتمنې یې د روم ښار خواته وړلې. د روم دولت په حقیقت کې هسې دستګاه وه، چې په زرګونو کسانو یې فشار راوړلو، د هغو زوښا (شیره) یې ایستله او رومیانو ته به یې ورکوله. د کار عمده ځواک په روم کې مریانو جوړولو، چې د مغلوبو هېوادونو وګړي وو. په لمړي سر کې چې د روم دولت پراختیا موندله او دا ټول مریان یې په خپلې ولکې کې راوستل، د هغه کار په پایله کې، چې په مریانو یې سرته رساوه، د رومیانو په شتمنۍ کې خارق العاده زیاتی رامنځ ته شو. خو دغه

پرمختګ تل پاییښت کولای نشو، ولې چې مریانو لـه دغې شتمنۍ نه هېڅ برخه نـه لرلـه او پوهېدل، چې که د کار بور یې څومره هم ډېر شي، د هغو برخـه بـه له خوړلو او نه مرلو څخه ډېره نه وي او له دې کبلـه یې ګټه نلرله، چې د کار افزار بشپړ کړي او د کار ابـره پورته یوسي. اصولن دا موضوع په ازموینه کې زبات ته رسېدلې ده، چې هرکلـه چې ځینـي د متروکې پـه زور په کار بوخت وي، د کار ابرې یې لـه هغـو کسانو څخه چې له شوقه په کار بوخت دي، په څو ځلو لـږه وي.

دوی هېڅکلـه د کـار د افـزارو د بشـپړولو او د ابرې د پورته وړلو په فکر کې نه دي او دقیـق افـزار د بې پامې په پایله کې خرابـوي. در روم پـه هېـواد کې برسېره پر دې، چې له مریانو سـره یـې دا ډول چلنـد کاوه، اصولن لاسي کار یې خوار ګڼلو او دې موضـوع هم د روم اقتصاد ته لوی زیان رسولو.

د روم دولت د دې لپـاره چې دا زیانونـه جبـران کړي، اړ ؤ نوي هېوادونه ونیسي او نوي مریـان لاس ته راوړي، تر څو په دې توګـه د دوی د شـتمنۍ تلـه

لا درنده شي. خو دې هېوادنېولو هم پايښه مونـدلې نشوه. د روم دولت په پای کې د ايران له دولت سره، چې هغه هم ځواکمن او نړې نيـوونکی ؤ، مـخ شـو او نور يې پرمختګ ونکولای شو.

په دې توګه د روم دولت اقتصاد په يوه پای تړي کې بند شـوې ؤ او لازمـه وه، چې يـو ټولنيز بـدلون رامنځ ته شي او دی له پای تړي څخه راوباسي.

د روم په هېواد کې بزګرو – پرته له مريانو، چې د زياراستونکو ډېرکی يې جوړاوه – هغه کسان وو، چې د خپل کسـب او ان د خپلـو اوسـېدو ځـای د بـدلولو واک يــې نــه لاره او د هغــو نــژاد اصــولن د زمکــې څېښتن پـورې تړلـی ؤ. دې ازادو بزګـرو د مريـانو پـه پرتلـه څـه ښـېګڼې درلـودلې، خـو ورو ورو د مريـانو وضعيت د دې بزګرانو وضـعيت تـه نـږدې شـو. يـانې ورو ورو دود شو، چې مريان له هغه زمکې څخه پرته، چې کرهڼه پرې کوي، بل چېرې خرڅ نکړي، تر څـو زمکه بې بزګره پاتې نه شي او لـه څـو پېړيـو وروسـته دې تګـلارې وده ومونـده او د دې لپـاره چـې مريـان خپـل کارتـه مينـه وال واوسـي او زياتـه ابـره توليـده

کړي، دوی يې د مريه توب له بنده راواېستل او ويې
ويل، چې له دوی څخه هر يو د يوې ځيرې زمکې
څخه د ابرې پورته کولو حق ولري، خو د دې زمکې
په بدل چې ده ته ورکول کېږي، د خپلې ابرې يوه
برخه بايد ارباب ته ورکړي او هغه لپاره بيګار وکړي،
خو د دې ابرې کچه او د دې بيګار موده هومره وه،
چې نږدې د کار ټول بور يې د بزګر له لاسه اېستلو.
ازاد شوی بزګر نور د پخوا په شان د خپل کار د
ابرې د کچې په هکله بې توپيره نه پاتې کېده، ولې
چې ياد شوې ابره اصولن په ده پورې اړه لرله او ده
هيله لرله، چې له هغه نه برخه من شي.

د مريه توب په دورکې هر څه چې د مريه له
کاره لاس ته راتلل، اصولن د ارباب برخه وه، خو په
دې دورکې د «ازاد شوي بزګر» د کار بور اصولن په
ده پورې اړه لرله، خو د هغه عمده برخه يې، د هغه
هوډونو پر بنسټ چې پر ده باندې تحميل شوي وو،
ارباب ته پرېښودل. دې ازاد شويو بزګرو ته سرف او
د دوی دور ته سرواژ وايي، چې هماغه فيوډالي دور

دی. سرفان په زمکه پورې تړلي وو او د زمکې په خرڅلا سره له یوه ارباب نه بل ته منتقلېدل.

نو ګورو، چې مریه توب نه یوازې د مریانو په ګټه نه وه، چې د اربابانو په ګټه هم نه وه او د هغو زمکې په سرواڅ باندې بدلې شوې او هغه څه چې له دې بدلون سره مرسته وکړه، د جرمنانو یرغل په روم باندې ؤ، چې د روم دولت سازمان ته یې ماتې ورکړه او د نویو اړتیاوو پلي کېدل یې اسان کړل. دا یرغل، چې د مریه توب په دور باندې پرېکړنده ګوزار ګڼل کېږي، له زېږېز نه وروسته په څلورمې پېړۍ کې پېښ شو او د سرواڅ دور څه نا څه تر اتلسمې پېړۍ پورې یانې نږدې څوارلسو پېړیو په موده په اروپایي هېوادونو کې پاته شو.

*****

## ۱۱

## د کوچنيو او منځنيو مالیکتونو له منځ تلل

د روم په دولت (مریه توب دور) کې د دې لپاره چې د ملت شتمني ټوله کړي، بې شمېره ماليې يې ټاکلې وې، چې هم په زمکې او هم په سر وې، تر څو هم له بزګره څخه واخيستلې شي او هم له کسبي څخه او برسېره پردې ماليو نوره قانوني تحميلې يې هم وضعه کړې وې، د بېلګې په توګه خانانو کولاى شول، څومره چې کولاى شي بزګران بيګار ته اړباسي، ياني په هغو باندې وړيا کار وکړي او داسې نور.

دغه ټول تحميلونه لامل شول، چې ورو ورو وړوکی او منځنی مالکیت له منځه لاړ شي. يو د بې شمېره ماليو له امله او بل په دې دليل چې واړه او منځني خانان د لويو خانانو له تيري څخه بچ نه پاتې کېدل. ماليې هومره ډېرې وې، چې ببوزلي

مالک به د خپلې زمکې د انګورو او د مېوې ونې به يې پرې کولې، تر څو له هغو ماليو څخه چې په ده پورې يې اړه لرله خلاص شي. له بله پلوه لويو خانانو، ځواکمنو ملکانو هڅه کوله، چې خپلې سيمې پراخې کړي او له دې کبله يې په وړو خانانو باندې ناتار کولو. د بېلګې په توګه هغوی يې اړباسل، چې خپلې زمکې تر تحميلي شرطونو سره خرڅې کړي او دا بېوزلي به چې بربنډ شول، يوازېنۍ هوبله يې دا وه، چې لا لوی خان ته نږدې د يوه اجاره لرونکي بزګر په توګه په کرهڼه بوخت شي.

له دې کبله ځيني بزګر مخکې له دې نه، چې د بېوزلۍ دغې درجې ته راپرېوزي، په دې کې سلا کتله، چې د يوه لوی خان، چې په هغه دورکې يې پټانس ياداوه، ملاتړ ترلاسه کړي. د دې ملاتړ شرط دا ؤ، چې خپل ملکيت بشپړ پټانس ته وسپاري، تر څو هغه هم د زمکې نه د برخې اخيستلو حق د مرګ تر ورځې پورې ده ته وبخښي. په دې توګه يو نسل به چې تېر شو، پټانس به يو شمېر بې ملکيته بزګر

مخې ته لرل او هر څومره به چې د دغو شمېر زياتېدو، د پتانس ځواک هم ډېرېدو او په دې توګه يې کولای شول لا نور بزګر له خپلو ملکونو نه جلا کړي.

نو ګورو، چې د روم دولت په وروستيو کې يانې له څلورمې پېړۍ نه مخکې واړه او منځني مالکيتونه په تدريج سره له منځه لاړ وو او يو شمېر شتمن بريالي شوي وو، چې واړه خانان دړې وړې کړي او د زمکې مطلق خاوندان شي او يوازې د زمکې نه برخه اخيستلو حق د ځينو شرطونه په اړوند هغه چاته، چې پخوا خانان وو، ورکړي.

کله چې جرمنانو په څلورمې پېړۍ کې په روم يرغل وکړ او د روم دولت مرکزيت ته يې زيان ورپه برخه کړ، دې لويو خانانو وکولای شول، خپلو ملکيتونو ته لا بنه پراختيا ورکړي او سيمه ايز ځواک ومومي او هم دوی وو، چې وروسته فيوډالان ونومول شول.

پايله:

۱ – ځينې غـواړې داسـې ښـکاره کـړي، چـې فيوډالي (سـرواڅ) دور يـوازې د جرمنـانو د يرغـل لـه امله رامنځ ته شو. د هغو د يرغل په پايله کې ؤ، چې مريه توب لـه منځـه ولاړ او د سـرواڅ رژيـم رامـنځ تـه شو او لوی خانان (فيوډالان) پيدا شول.

خو د تاريخ تجربه څرګنـدوي، چې د روم دولـت سازمان د بدلون دور ته رسېدلی ؤ او ټولنيزو اړتياوو غوښتنه کوله، چې دا بدلونونه لاس ته راشي او کـه د جرمنانو يرغل پېښ شـوی هـم نـه وای، دا بدلونونـه سر ته رسېدل، خو د جرمن يرغل دا بدلونونـه اسـان کړل.

۲ – د مريــه تــوب لــه مــنځ تلــل د مريــانو د څېښتنانو د زړه سواندی پايله نه وه، بلکه دا موضوع د مريانو د خوځښتونو او د ټولنيزو ضروریاتو په پايله کې پېښ شول.

۳ – د سرواڅ دور د مريه توب د دور پـه پرتلـه پـه ځانګړې توګه له حقوقی نظـره د ولـس ډېرکيـو لپـاره يوه پرمخ تللی او لا ښه دور شمېرل کېږي.

اوس د سرواژ (فیوډالي) دور په څېړلو او تحلیـل پیل کوو:

*****

# ۱۲

## سرفان او نور بزګر

په تېر څپرکي کې مو ښکاره کړه، چې د مریه توب رژیم ناڅاپه په سرواژ رژیم بدل نشو، بلکه دا بدلون د ټولنیزې اوضاع د ودې په پایله کې رامنځ ته شو، د بېلګې په توګه له هغه ځایه چې مریان یې د مالیې د اخیستلو په موکه د زمکې برخه ګڼل، د دې موضوع او نورو مهمو موضوع ګانو له کبله، چې څرګند مو کړل، له هماغه ۳مې زېږیزې پېړۍ د دې دود بنسټ کېښودل شو، چې مریان دې زمکې پورې تړلي وي، تر څو کرهنیزې چارې ډېره وده ومومي او خانان لا ډېره ابره پورته کړي او مالیې اسانه ټولې کړي. دغه دود په څلورمې پېړۍ کې ځواکمن شو او په دې باندې یې، چې مریه دې د زمکې نه سوا خرڅ شي، بندیز ولګاوه او مریه باید په زمکه پورې تړلی وي. دا قانون که څه هم د خانانو

او مامورینو په ګټه هم ؤ، خو په همدې توګه یې د خان اختیار د مریانو په خرڅلا کې محدود کړ او مریانو ته یې کوچنۍ ازادي ورکوله.

همدې قانون ورو ورو ځواک ووموند، تر هغو چې مریه د مریه توب له وضعیت څخه ووتلو او د سرف بڼه یې ونیوله.

په ګرده توګه د سرف توپیر د مریه سره دا ؤ، چې سرف په زمکې پورې تړلی ؤ، کورنۍ یې درلوده، کور او کرونده یې لرله، ارباب یې کولای نشول دی لېرې ځای کې خرڅ کړي، ښځه او بچي یې له ده نه اخیستلای نشول او دا یې هم کولای نشول، چې کور او کرونده، چې له نېکونو څخه ده ته رسېدلې وه، ترېنه واخلي.

د لویو اربابانو زمکې په دوو برخو ویشل کېدلې: یوه عمده برخه، چې بزګرو ته د کرلو لپاره ورکول کېده او بله هغه برخه، چې د ارباب په کور پورې نښتې وه او د ارباب په لاس کې پاتې کېدله، خو هغه هم باید بزګر د ارباب په ګټه وکري، تخم وشېندي او

لـو وکـړي. پـه ننـه نـې نـړۍ کې بزګـران هغـه چې د زمکې خاونـدان نـه وي، دوه ډولـه دي: يـا مـزدوران دي او يا اجاره اخيسـتونکي – خـو پـه منځنيـو پېړيـو کې بزګران په عين وخـت کې د اربـاب پـه زمکـو کې مزدوران وو او له پلار نه زوی ته په همـدې وضـعيت کـې پـاتې کېـدل او پـه خپلـو زمکـو کـې بيـا اجـاره اخيستونکي ګڼل کېـدل. خـان کـولای نشـول، هغـه زمکه چې دوی په لاس کې لرله (يـانې خاونـدان يـې نه دي، خو لـه هغـه نـه برخـه اخلـي)، لـه دوی څخـه واخلـي او لـه دې پلـوه داسې وه، چې زمکـه د هغـو خپـل مـال وي، خـو پـه بـدل کـې يـې د خانـانو پـه وړاندې هوډونه لرل:

۱ – خان ته د اجارې حق يـې بايـد ورکـړې وای، ماليات يې پرې کړي وای، له غنمو، وربشو، د چرګـو هګيو او له چرګو څخه ارباب ته برخه ورکړي.

۲ – بايد د ارباب د زمکې پر سر د کرنې لپاره لاړ شي، ابره يې لو، ګدام او وچ کـړي او دا وړيـا کارونـه يې بيګار بلل.

۳ – خپل غنم باید د وړه کولو لپاره د ارباب ژرندې ته وبسي، خپله ډوډۍ د هغه په تناره کې پخه کړي، خپل انګور د هغه په مخصوص لوښي کې وزبېښي د دې ټولو په بدل کې مزد پرې کړي او په همدې توګه کچې او وزنونه چې ارباب ټاکل، په بازار کې ومني.

۴ – د ارباب قضاوت ته باید سر کېدي او له دې کبله هر کله به يې چې ګناه وکړه، ارباب له دوی څخه د ځان په ګټه جريمه اخيستله او که لويه ګناه يې کړې وای، هغوی يې وژل. ارباب د دې لپاره چې ښکاره کړي يې وي، چې د بزګرانو په اړوند د قضاوت حق لري، په خپله زمکه کې يې دار جوړولو او غله يې له هغه نه ځړول.

په دې توګه وينو، چې سرفان د مريانو په پرتله د ځينو بانديوالتياوو خاوندان وو، خو په هم هغه توګه مو چې وړاندې وويل – او هېڅکله يې نبايد هېر کړو – دا بانديوالتياوې په يوځل لاس ته رانغلې، بلکه ورو ورو او د ټولنې د ضرورتونه پر بنسټ منځ ته راغلې. د دې لپاره چې په دې موضوع سم پوه شو، يانې په

بشپړه توګه يې درک کړو، چې سرفان په تدريج سره او د ټولنيزې ودې له امله له مريه توب نه جلا شول، د دوی وضعيت په بېلابېلو پېړيو کې څېړو:

د بېلګې په توګه د فرانسې په خاوره کې په ۱۳مې پېړۍ کې هسې کسان وو، چې وضعيت يې د پخوانيو مريانو له وضعيت سره توپير نه درلوده، خو ورو ورو د سرفانو وضعيت وټاکل شو او په هماغه ۱۳مې پېړۍ کې دوه ډوله سرفانو شتون لاره: يو هغوی چې د خپل ځان او د خپلو مالونو په اړوند په بشپړه توګه د ارباب د ځواک اېل وو، تر دې هانده چې ارباب کولای شول له دوی او د دوی د مالونو څخه د خپلې خوښې او ارادې پر بنسټ ګټه پورته کړي. بل هغه چې يوازې له مرګه وروسته يې ټول مالونه ارباب ته رسېدل او ان اولادونو پورې يې اړه نه موندله.

ارباب هرکله چې غوښتل پر هغو يې ماليې او بيګار تحميلولو او هرکله به چې پيسو ته اړ کېده، کولای يې شول له هغو څخه ماليې واخلي. برسېره پردې بزګرو بايد بيګار کړې وای او نور خدمتونه يې

سرته رسولي واى او ګڼ شمېر غير مستقيمې مالیې يې پرې کړي واى او غالبن يې هومره غرامت پر دوى باندې تحميلولو، چې د دوى د راتګ عمده برخې په دې لار کې لګېدلې.

خو په ۱۵مې پېړۍ کې د سرفانو وضعيت تر يوه هانده ښه شو. سرفان له هرې بڼې څخه چې وو، کولاى يې شول خپل ميراث خپلو اولادونو ته ورکړي. ارباب کولاى نشول له هغو څخه د يوه ځواک ورستوونکي کار غوښتنه وکړي، خو په همدې پېړۍ کې سرف کولاى نشول د ارباب له خوښې پرته له يوه ازاد وګړي سره واده وکړي او ان هغه ښځه يې چې د بل ارباب په سيمه کې وه، کولاى نشول د ارباب د خوښې نه پرته په ميرمنتوب ومني.

په ۶مې پېړۍ کې بيا د سرفانو په وضعيت کې توپير پيدا شو. په دې پېړۍ کې سرفان په درې ډوله وو: يو هغه چې د سرواژ له وضعيت نه وتلاى نشول او ماليې يې بايد پرې کړې واى او بيګار يې کړې واى. بل هغه چې کولاى يې شول ازاد شي، خو په دې شرط چې خپله ټوله منقوله شتمني يې د ارباب په زمکه کې پرېښودلې واى. يوه بله ډله هغه چې د

ازادېدو شرایط يې لا هم اسانه وو او د دې کار لپاره يې باید يوازې هغه زمکه، چې په اختیارکې يې درلودله، ارباب ته خوشې کړي. په دې پېړۍ کې که چېرې يوه سرف له يوې ازادې وګړې او يا د هغه سرفې سره، چې د بل ارباب په سيمه کې وه، واده کړی وای، باید غرامت يې پرې کړې وای،.که سرفې ښځې چېرې له ازاد سړي سره واده کړې وای، ازاده نه شمېرل کېدله او په وضعیت کې يې بدلون نه راتللو، مګر دا چې هغه سړی يې ارباب وای. سرف کولای نشول د کومه زمکې خاوندتوب ومني، ولې چې دا عمل په غیر مستقیمه توګه د ده د ازادې لامل ګرځېده، خو د خپل ارباب د رضایت نه پرته يې کولای شول د زمکې څخه د برخې اخیستلو حق ومني.

نو وينو، چې د سرواژ نطفه د روم د امپراطورۍ په دورکې پيدا شوه او د فيوډاليزم په لمړي دورکې يې وده وکړه او شکل يې بدلون وموند، هسې چې

څومره وړاندې راځو، سرفان ازادۍ ته ډېر نږدې کېږي.

اوس که د ځانګړو وضعیتونو څخه، چې سرفانو د فیوډالي دور په هره پېړۍ کې لرل، سترګې پټې کړو او یو بشپړه نظر دې دور ته، چې له ۴مې پېړۍ نه یې تر ۱۸مې پېړۍ پورې پایښت وموند، واچوو، د سرفانو حالت څنګه وینو؟

وینو، چې د دوی وضعیت د مریه توب دور په پرتله ښه شوی، خو د مریه توب اصول یې لا هم لمنه نه پرېښېدي او د بېوزلۍ او اسکېرنې په چکړو کې ننوتي دي. د دې لپاره چې دا موضوع څرګنده شي، ښه ده، چې د رعیتو سره د اربابانو چلند ښکاره کړو.

ارباب لا د بزګر په اړه بشپړ اختیار درلوده او ورله داسې ښکارېده، چې هغه زمکې، چې سرف کرلي د ده د ښکار خنډ جوړېږي، پرته له دې چې د هغه د بدمرغۍ په سوچ کې شي، هغه به یې ورله په بل مخ واړولې.

د ارباب له حقونو څخه يو دا ؤ، چې هرکله به لـه کليو څخه تېرېده، رعيتو بايد ځای ورکړې وای او دا موضوع د رعيتو د خورا زيار لامل ګرځېدله، د بېلګې په توګه کله چې يې وغوښتل له يوه کلي نه تېر شي، چوپړو يې د دې لپاره چې د ده خېټه ښاربه کړي، هر څه يې چې وموندل، لـه ځانـه سـره يـې يـوړول. بزګرانو ته يې ګواښ وکړ، چې که هغه څه چې لـري، پټ کړي، متروکې به وخوري. په پای کې يې د خپل لوټ مال په کليسا کې غونډ کړ او پـه دې حـال کـې چې بېوزلـو رعيتـو لـوږه ګاللــه، دوی د عـيش ټغـر وغوړولو!

تـاريخ ليکونکـو ليکلي، چې لـه همـدې اربابـانو څخه يو له هغو کروندو څخه، چې تخم پکـې شـښندل شوی ؤ، تېرېدو او له هغـه ځايـه چې ابـره يـې پـه ده پورې اړه نه موندله، هغه يې په بل مخ واړوله.

د دې زور ويلو له امله وو، چې بزګرانو په بېـوزلۍ او بدمرغۍ کې ژوند کاوه. بزګر به خواره ختـين چتـې کوډله د غوجل او اخور سره لرله، لوښي يـې ډېـر لـږ

وو، خواږه او کالي يې هغو ابرو پورې تړلي وو، چې ارباب خوښ کېدو، ده ته يې خوشې کړي، د ده خواږه عمومن توره ډوډۍ، سابه، شېدې او په ندرت سره کب او د خنځير غوښه وه. له همدې کبله ځيني بزګران له خپلې کروندې څخه تښول او په غرونو او ډاګونو به يې سر شو او کله د بېلګې په توګه د دې لپاره چې خپلې زړې مور ته خواږه ورکړي، غلا او لاروهلو ته اړ کېدل. نورو وګړو، چې د دې ځواک يې نلرلو، سوالګري کوله.

د فرانسې د ۱۸مې پېړۍ له شاعرانو څخه يو وايي: په بيابان کې انسان ته ورته موجودات ګورې، چې زمکې ته ټيټېږي او چې ورنږدې کېږې، ګورې، چې د بوټو ولې د خوړلو لپاره راکاږي. دغوی د فرانسې بزګران دي!

آيا نه ګورې، چې د هغې دورې د سرفانو او زموږ د هېواد ننه نيو بزګرانو تر منځ کوم ورته والی شتون لري؟ دا فصل بيا ولولی او دا وموندی، چې دا ورته والی په کومو ځايونو کې دی. موږ به هم په راتلونکو څپرکو کې له دې ورته توبونو څخه خبرې وکړو.

## ۱۳

## واسال او سينيور

**دفيــوداليزم پايليــد(دورنما):** پرتــه لــه هغــه اپلانيته څخه، چې د يـوه هېـواد د وګـړو او دولـت تـر منځ شتون لري، يو بل ډول اپلانيت هم شتون لرلـو او هسې اپلانيت دی، چې بېوزلي او خـوار کسـان يـې د شــتمنو او ځواکمنــو کســانو پــه وړانــدې لــري. دا اپلانيت له هغه اپلانيت څخه جلا دی، چې د بېلګې په توګې د مريه او ارباب تر منځ يې شـتون لاره، ولې چې د مريه اپلانيت له ارباب څخـه قـانوني او جبـري دی، خـو د بېـوزلي اپلانيـت لـه شـتمن څخـه هسـې اپلانيت دی، چې ظـاهرن پـه هـېڅ قـانون کې ثبـت شـوی نـه دی او نـه د بېـوزلي سـړي پـه ارادې پـورې تړلـی دی او حـال دا چې بېـوزلی سـړی د دې لپـاره چې د زورويوونکـو د ناتـارو او بېـوزلۍ څخـه تـر څـه

هانده پورې وسائل شي، اړ دی، چې د شتمنو او ځواکمنو کسانو اېلان واوسي.

دا وضعیت په پخوانیو ټولنو کې هم شتون لاره او د بېلګې په توګه د مریه توب په دور (د روم امپراطورۍ) کې یې هم شتون لرلو او په ځانګړې توګه ګورو، چې لمن یې د زېږیز په څلورمې پېړۍ کې خورا غوړېدلې ده.

په دې توګه چې واړه خانان ځانونه د لویو خانانو تر ننګې لاندې راولي، تر څو هم د ځواکمنو کسانو له ناتاره وسائل شي او هم له دې لارې مهمې دولتي دندې ونیسي.

دا «ننګه غوښتنې» بېوزلو او کمزورو کسانو پورې محدودې نه وې، بلکه په هماغه لمړې زېږیزې پېړۍ کې لېدل کېږي، چې مهم کسان هم ځانونه د لا مهمو خلکو تر ننګې لاندې راولي او البته د هغه چا ننګه چې تر نورو ډېر د پاملرنې وړ وه، چې له نورو یې لا ډېر ځواک لرلو.

د «ننګې» عمومي شرط دا ؤ، چې زبرلاسی کس خپل لاس لاندې کس نه د هر څه په وړاندې ننګه

وکړي او د بېلګې په توګه که دی وړوکی خان دی، دی د مالیو له پرېکولو څخه تر شوني هانده وبخښي. لاس لاندې کس هم باید په بدل کې ځان د هغه زبرلاسي د اېلانیت لاندې راولي.

ورو ورو دې موضوع پراختیا ومونده او د «ننګې» لپاره خاص شرایط رامنځ ته شول او د ننګې له شرطونو څخه یو دا ؤ، چې وړوکی خان خپل ملکیت بشپړ لوی خان ته خوشې کړي، تر څو هغه هم په بدل کې د مرګ تر موکې پورې د زمکې نه د برخې اخیستلو حق ده ته وروبخښي. په دې توګه چې یو نسل تېرېدو او د زمکې لمړي خاوندان مړه کېدل، لوی خان او یا د هغه ځای ناستي به خپلې مځې ته یو شمېر بې زمکې بزګر لرل او هر څومره به چې د دې بې ملکه بزګرو پر شمېر زیاتېدو، هومره به هم د لوی خان ځواک ډېرېدو او کولای یې شول نور بزګر هم په دې تدبیر سره له ملکیت څخه بې برخې کړي.

نو وینو، چې له څلورمې پېړۍ وړاندې د روم امپراطورۍ د زمانې په وخت کې واړه او منځني

مالکیتونه په تدریج سره له منځه لاړ وو او یو شمېر شتمن توانېدلي وو، چې واړه خانان دړې وړې کړي او د زمکې مطلق مالکین شي او یوازې د زمکې څخه د برخې اخیستلو حق ځینو کسانو ته، چې پخوا خانان وو، د ځینو شرطونو په بدل کې ورکړي او دغه لوی خانان هماغه کسان وو، چې د همدې اقتصادی وضعیت له امله، چې رامنځ ته شوی ؤ، سیاسي او قضایي ځواک هم ومونده او د سینیور په نامه یاد شول او د فیوډالیزم دوره یې منځ ته راوړه.

**فیودالي ډله:** مسلمه ده، چې د اقتصادي ځواک یانې د شتمنۍ د تولید د وسایلو لرل، چې په هغه وخت کې بزګر او زمکه وو – سیاسي ځواک منځ ته راوړي او بزګر چې د خپلې شتمنۍ څخه څه چې د خپل ژوند له توښې نه، چې زمکه ده، بې برخې کېږي، ناچاره دی ځان په بشپړه توګه د لوی خان ځواک ته وسپاري، په ځانګړې توګه چې د جرمن کامونو تر یرغله وروسته د روم دولت او ځواک مرکزیت ته لوی زیان ورسېدو او د دولت او قانون ننګې کمښت ومونده او له دې کبله بزګر نه یوازې د

اقتصاد له پلوه، بلکه له سياسي او قضايي اړخه هم د لويو خانانو (سينيورانو) په لاس کې ولوېدل.

د زمکې خاوندانو سيالي په خپلو کې په همدې توګه پايښته لرله او له هغه ځايه چې دوی ځواکمن شوي وو او مرکزي دولت کمزوری شوی ؤ، د زمکو دې خاوندانو لکه د وړو دولتونو خاوندانو په توګه په خپلو کې په جګړو پيل وکړ او ځينې له ځينو نور ځواکمن شول او د هغو کمزوري، چې اړ شول د خپلو زمکو د ساتلو لپاره د لا لويو خانانو د ننګې لاندې راشي، **واسال** ونومېدل او هغه لا لويو خانانو ته يې د **سينيور** لقب ورکړ.

د سينيورانو معامله له واسال سره له يوه پلوه هغې معاملې ته ورته وه، چې واسال له وړو خانانو سره کړې وه، يانې له هغه مودې څخه، چې د «ننګې» اړيکه د واسال او سينيور تر منځه شتون موند، واسال خپل مالکيت په بشپړه توګه له لاسه ورکاوه او يوازې د زمکې څخه د برخې اخيستلو حق يې لرلو او د دې برخې اخيستلو حق په بدل کې بايد درې دندې په غاړه واخلي:

۱ – د مطلقې وفا لرلو قسم باید یاد کړي، په دې مانا چې د سینیور «سړی» شي او هر کله چې سینیور دی جګړې ته وروغواړي، د هغه مرستې ته ورشي.

۲ – ځان د سینیور د نیاوګلوی او قضاوت اہل وکڼي او د هغه حکم سره خوښ واوسي.

۳ – په هغو اړوندونو کې، چې دودونو او رواجونو ټاکلي وي او په هغو اړوندونو کې چې سینیور پیسو ته اړه پیدا کړي، هغه سره د پیسو مرسته وکړي.

نو وینو، چې د فیوډالي دور له ځانګړتیاؤ څخه دا دی، چې د تېرو دورونو د اقتصادي وضعې پایلو په دې دور کې وده وکړه او د هغو سیاسي او قضایي اغېزې – چې د سینیور، واسال او سرف منځ ته راتلل دي – څرګندې شوې. په دې دور کې د واسال لپاره هېڅ دولت او قانون نشته، مګر د هغه چا اراده، چې د اقتصاد له پلوه پر ده باندې پورته والی لري، یانې هغه څوک چې د زمکې څښتن پېژندل شوی دی.

ځومره به چې يو سينيور له دې کبله، چې نوي واسالان په ده پورې تړل کېدل، ځواکمن کېده، هومره به يې کولای شول نور واسالان تر خپلې ننګې لاندې راولي او د لا ډېرو زمکو خاوند شي. په دې ډول د فيوډالانو ډلې شتون وموند، يانې هغې ډلې چې بشپړ سياسي او قضايي ځواک يې د هغه چا په لاس کې ؤ، چې د زمکو لرلو له کبله يې په نور پورته والی ترلاسه کړی ؤ. ځومره هم چې دا دستګاه بشپړه شوه، د پاچا ځواک لږ شو او په هغه دور کې چې فيوډاليزم وده موندلې وه، پاچا په حقيقت کې د پاچايي ځواک نه لرلو، ولې چې سياسي ځواک اقتصادی ځواک ته اړ دی او پاچا په دې دور کې اقتصادي ځواک نه لاره، ولې چې د شتمنۍ توليد کوونکې طبقه يانې بزګران او کارګران يوازې د لاسالانو تر ادارې لاندې وو او هر لاسال هم يوازې خپل سينيور پېژانده او هر سينيور په خپله سيمه کې د ماليات ټولولو په اړوند واکمن ؤ. له دې کبله پاچا سينيورانو ته ډېر اړ ؤ، تر دې چې سينيوران پاچا ته اړ وي او له دې کبله حقيقي ځواک يانې

اقتصادی ځواک یې په لاس کې نلرلو او په پایله کې
یـې سیاسـي او قضـایي ځـواک هـم نـږدې لـه لاسـه
ورکړی ؤ.

نو وینو، چې د فیوډالیزم په زمانې کې د ټولنې د
بېلابېلـو ډلـو تـر مـنځ یـوازېنې اړیکـه زمکـه وه او پـه
همدې توګه وینو، له دې کبله چې پخواني اقتصـادي
رژیم بدلون وموند، نـوی مالکیـت رامـنځ تـه شـو، پـه
دې مانـا چـې د زمکـې پـه اړه ازاد او مطلـق مالکیـت
نږدې له منځ ولاړ او سرفانو عمومن زمکـه یـوازې د
برخې اخیستلو لپاره په واک کې لرله.

**پایله:**

۱ –اقتصادی وضعه وه، چې سرفان او سینیوران
او د دوی حقوقي دندې یې رامنځ ته کړې.

۲ – د فیوډالیزم پـه دور کـې زمکـه د شـتمنۍ تـر
ټولـو لویـه وزلـه او د ټـولنې د بېلابېلـو ډلـو تـر مـنځ
اصلي اړیکه وه.

*****

## ۱۴

## رنځورتیا، قحطی، مرگ، پاڅون

د بزګرانو رنځوونکې وضعه مو ولېدله، د ملک لرونکو ژوند مو هم وڅېړه، او له دې موضوع څخه خبرې کوو، چې د وضعې خرابي او د کارونو خرابي چې د پرله پسې جګړو په پایله کې رامنځ ته کېدله، د لویو قحطیو لامل ګرځېدله، چې یو ځل به یې ګڼ شمېر بزګران د مرګ ډاګ ته لېږل.

د بېلګې په توګه د ۹۷۰م زېږیز څخه تر ۱۰۴۰م زېږیزه پورې نږدې ۴۸ ځلې په فرانسې کې قحطي رامنح ته شوه.

قحطیو عمومن سیمه ایزه بڼه لرله، خو کله یې هم عمومیت موندلو. په ۱۰۰۰م زیږیز کال کې داسې یوه لویه قحطي پېښه شوه، چې د روم ټوله نړۍ یې ونیوله او لږ داسې څوک ؤ، چې د لوږې په مونګولو کې پرېنوزي. خلکو نه یوازې د ځناورو او تر

ټولو وحشي حیواناتو غوښې خوړلې، بلکه د ښځو او ماشومانو غوښې به یې هم خوړلې. دې قحطۍ بله اغېزه هم لرله، په دې مانا چې بد خواړه د وبا د پراختیا لامل شول او دې وبا له قحطۍ څخه لږه خطره نلرله، د بېلګې په توګه په هماغه وختونو کې د فرانسې په یوه ایالت کې یې سپین ګل د وړو او سبوس سره ګډولو د ډوډۍ نوم یې پرې ایښودلو.

ډېري وګړو، چې خپله لوږه یې په دې ډوډۍ ورکه کړای شوه، وپړسېدل او مړه شول. دې قحطۍ د خلکو په روغتیا باندې خورا بده اغېزه لرله او په پای کې یې اروپا ته یو طاعون راوستلو، چې درې بشپړه کاله یې ټوله اروپا نیولې وه.

د دې ټولو ناروغیتاؤ او قحطۍ له کبله چې پیښې شوې او په ځانګړې توګه د هغه ناروغۍ له امله چې په ۵۴۱م او ۵۴۲م زېږیز کال کې په مصر، سوریې، ایران او اروپا کې خورې شوې، ورو ورو خلک باوري شول، چې یقینن کوم سحر او جادو شتون لري، چې د ناروغۍ لامل ګرځېدلې. د هغو فکرونه لا دومره خلاص شوی نه وو، چې د دې

ناروغۍ حقیقي لامل درک کړي او په دې پوه شي، چې دا ناروغي د سمو خواړو، سالم کور او روغتیا د نلرو له امله رامنځ ته شوې ده. له دې کبله ناهوبله وو، غیبي ځواکونو ته اړ شي او د بېلګې په توګه کوډګر د ناروغۍ لامل وګڼي. له همدې ځایه په بنه توګه کولای شو د خرافاتو د پیدا کېدو حقیقي لامل درک کړو.

**ترهغه پورې چې بشر د هغو بلاګانو په وړاندې، چې په ده باندې رالوېږي، کمزوری او بې ځواکه دی او د هغو لامل کشفولای نشي، تل به په غلطو عقیدو پورې تړلی وي، اړ به وي هغو بلاګانو ته یو خیالي لامل وتوګي او له دې کبله به په خرافاتو اخته شي. که چېرې غواړو چې خرافات له منځه ولاړ شي، اصلي هوبله دا ده، چې بشر ځواکمن کړو، یانې د بشر مادي وضعې ته داسې سمون ورکړو، چې د بلاګانو او ناتارونو په منګولو کې کمزوری نه وي.**

په هره توګه، په کوډګرۍ باندې د باور دومره ځواک وموند، چې کېسه کوي: کله چې د بورګني

(د فرانسې يو ولايت) ملکه د ناروغتيا له امله مړه کېدله، له مېړه نه يې هوډ واخيست، چې هغه طبيبان، چې د دې معالجه يې کوله، ووژني!

بيوزلي بزګران له يوه پلوه د سينيورانو تر فشار لاندې وو او له بله پلوه د بېوزلۍ تر فشار لاندې – دا ناروغتيا او قحطۍ هم برسېره پردوی باربدلې، تر څو چې په پای کې تنګ شول او په ځينو خوځښتونو يې لاس پورې کړ.

د ببلګۍ په توګه د **فرماندي** بزګر، چې د فرانسې يو ولايت دی، په کال ۹۸۸ کې پاڅېدل او له خپلو منځو نه يې څو کسه وټاکل، تر څو د سينيوروانو سره په خبرواترو کې شي، خو دا بېوزلي استاذي د سينيورانو له خوا ټوټې ټوټې ببرته راستانه شول (يانې د هغو غوږ، پزه يا لاس يې پرې کړی ؤ) او د سپارې پر سر ببرته راوګرځېدل.

خو د سينيورانو دې قساوتونو ونه کولای شول د بزګرانو د پاڅون مخنيوی وکړي او هغو بيا هم لاس په پاڅونونو پورې کړ او د ببلګې په توګه په کال ۱۰۰۸م کې يې هم به ځينو ولايتونو کې لاس په

خوځښت پورې کړ، خو د هغو لوی خوځښت په ۱۳۵۸م کال کې پېښ شو اوپه **ژاکري** باندې ونومول شو.

پېښه دا وه، چې د فرانسې په يوه شمالي ايالت کې بزګرانو د خپلو سينيورانو پر ضد په خوځښت لاس پورې کړ. دا پاڅون لکه اور چې په مزرو کې پرېوزي، د فرانسې ټولو بزګرو ته يې پراختيا ومونده او د هغه هېواد شمال او ختيز يې ونيوه. په ځينو ښارونو کې د منځني حال خاوندو خلکو هم، چې بورژوازي نومېدل، له بزګرو سره مرسته وکړه او د پاڅون اور لا لوړ شو. سينيورانو لاس او پښې ورکې کړې او له هغه ځايه، چې خطر يې وکتلو، په خپلو کې سره نږدې شول او په يووالي سره يې د سر غړونکو په له منځه وړلو کې همت وکړ او په پای کې يې هغو ته ماتې ورکړه.

د دې ماتې خوړونکو بزګرانو په اړوند يې هېڅ رحم ونکړ او ان کله چې هغه سرغړونکي يې، چې د اشرافو اردو ته يې پناه راوړې وه، په بشپړه ناځوانې ووژل او په خپل دې عمل سره يې د بشر په تاريخ

کې د ځووم ځل لپاره ښکاره کړه، چې حق هېڅکله په زاریو انسان ته نه ورکوي او د نړې زورویوونکي د بېوزلو خلکو د اوښکو په وړاندې له ځناورډولو چیغو او سانګې له څوکې څخه پرته بل څه نلري.

په هر حال، د فرانسې اشرافو یاغي بزګر په هسې قساوت او ځېرنتیا سره ووژل او جونګړې، کلي او د هغو مشران یې له خاورو سره سم کړل، چې د **ژاکری کلمه** له خپلې لمړنې مانا څخه راوتلې ده او په فرانسوي ژبه کې هر هغه پاڅون چې په خونړیو او وحشي سزاګانو سره مات شي، ژاکري نوموي. د بزګرو دا خوځښتونه لامل شول، چې ځیني ټولنیز باندېوالتیاوې تر لاسه کړي، دبېلګې په توګه له هغه ځایه چې بزګر(سرفان) له زمکو څخه تښتول، سینیوران ورو ورو اړ شول، چې ځینې زمکې هغو ته په واک کې ورکړي او دوی ازاد کړي. دا زمکې که څه هم ډېر څه نه وو، سره د هغه د بزګرو لپاره یو لوی باندېوالی شمېرل کېدو، ولې چې په دې توګه ازادېدل او سینیورانو کولای نشول پر هغو باندې

ډېرې مالیې تحمیلې کړي او هغوی ډېر بیګار کړي، خو د سرفانو د کروندو ازادېدنو او د فیوډالي اصولو راپرځېدنو نور مهم لاملونه لرل، چې په راتلونکو څپرکو کې به یې څرګند کړو. وړاندې تر هغه باید د فیوډالیزم په دور کې د صنعت او سوداګرۍ په هکله لنډه څرګندونه وکړو.

*****

# ۱۵

## صنعت او سوداګري تر يوولسمې پېړۍ پورې

په ۶مې او ۷مې پېړۍ کې اربابانو د خپلو زمکو له ابرو څخه ژوند کاوه او د دوی د احتياجونو عمده برخه، لکه کالی او داسې نور هم په هماغه زمکو کې چمتو کېدله، يانې پخپله بزګر وو، چې خپلو اربابانو ته يې توکرې اوبدلې او بوټان يې ګنډل او د دوی نورې اړتياوې به يې پوره کولې.

عبادتګاوو يانې هغه ځايونو، چې کشيشان او روحانيان هلته اوسېدل، عمومن ډېره پراختيا لرله، خو دې عبادتګاوو له هغو ابرو څخه، چې خپله يې چمتو کولې، ژوند کاوه او ان داسې چې د هغه وخت له تاريخونو سره پوهېدلای شي، تر ټولو ښې توکرې د هغو ښځو په لاس اوبدل کېدلې، چې په دې عبادتګاوو او د نړې خوشې کوونکو کورونو کې يې ژوند کاوه.

له دې وضعې څخه کومه پایله ترلاسه کېدله؟
د دې وضعې پایله دا وه، چې کليو بهر ته کوم اړتيا نه لرله او د ښار له صنعته بې نيازه وو. روښانه ده، چې ښارونه هم په دې توګه د صنعت خاوند نه ګرځېدل، ولې چې صنعت د اړتيا په پايله کې رامنځ ته کېږي او کله چې اړتيا نشته، صنعت هم نشته.
نو په دې دور کې د ټولنې اقتصاد پر کليو باندې څرخېدو او صنعت کوم پرمختګ نه لاره او له هغه ځايه چې د اربابانو سيمو د خپلو اوسېدونکو اړتياوې په خپله بشپړولې او نږدې نورو برخو ته يې کومه اړتيا نه لرله، د جنسونو بدل او سوداګرۍ کوم پرمختګ نه لرلو.
له هغه ځايه چې ښارونو په دې دور کې کوم مهم صنعتونه نلرل، وګړي يې هم ډېر نه وو او ان د هغو ښارونو پرګنې، چې د طبيعي وضعې په پايله کې يې کولای شول مواد لاس ته راوړي او له تيګو نه يې څو پوړه ماڼۍ جوړولای شوې، په هر هکتار(هکتار له ۱۰،۰۰۰ مربعو مترونو سره سم دی) کې يې له ۳۰۰ کسانو نه تېرى نه کولو او د

فرانسې هېڅ ښار له ۸ زرو نه تر ۹ زرو کسانو ډېرې پرګڼې نه لرلې و عمومن د ښارونو نفوس ۲ تر ۵ زرو پورې ؤ.

البته بیا هم په دې دورکې لږشانې سوداګري او صنعت موجود وو او هسې خلکو هم شتون لاره، چې بوختیا یې سوداګري وه، خو دا صنعت او سوداګري هومره کوچني وو، چې هغه کولای نشو د دې دور د اقتصاد بنسټ وګڼو.

ځینې داوه کوي، چې د مارسي ښار (د فرانسې په سهېل کې) په همدغه دورکې د ځلانده سوداګرۍ اقتصاد خاوند ؤ او له قسطنطنیې، سورېې، افریقا، مصر، اسپانیې او ایټالیا سره یې سوداګري کوله. د داوه سمه نه ده او نومړې سوداګري خورا کمزورې وه، لامل یې دا ؤ، چې د مارسي ښار په هغه وخت کې وړوکی ښار ؤ، چې له ۲۵۰۰ مترو څخه یې ډېر محیط نه لاره او اوسېدونکو یې له ۸ زرو تر ۹ زرو تېرې نه کاوه.

نو موږ هماغه پخوانۍ خبرې تکراروو، چې په ۶مې او ۷مې پېړۍ کې صنعت او سوداګرۍ کوم رونق نلرلو او کرهڼه د اقتصاد بنسټ ګڼل کېدله.

په ۸مې، ۹مې او ۱۰مې پېړۍ کې هم وضعه په همدې توګه وه او د ځمکې مالکیت په ځانګړې توګه خورا پراختیا موندلې، هسې چې د بېلګې په توګه یو روحاني د ۹مې پېړۍ په لومړي سر کې د ۳۳،۰۰۰ هکتاره کرهنیزې ځمکې خاوند ؤ.

سینیورانو نه یوازې دا چې سرفان یې کار ته اړ کول، چې ځمکې وکري، چمنونه او ځنګلونه وساتي، بلکه د دوی له خبرتیا او کارپوهۍ او فني مهارتونو نه هم ګټه پورته کوله او د بېلګې په توګه یو شمېر پښان(آهنګران)، ډوډۍ پخوونکي، ترکاڼي او نور یې په اختیار کې لرل، چې د هماغه سرفانو له منځه راوتلي وو. د سرفانو ښځې هم عمومن په تار سکڼلو او ټوکر اوبدلو بوختې وې.

**په لنډه توګه ویلا شو، چې د یوه سینیور سیمه په یوه وخت کې یوه پراخه بنګاه، یوه پراخه کرونده او یوه پراخه کارخونه وه، په دې حال کې، چې**

**صنعتي بڼه يې کمزورې او تر ډېره پورې يې کرهنيزه بڼه لرله.**

نو هره سيمه د خپلواکې خاونده وه، ولې چې د سينيور او سرفانو ټولې اړتياوې يې بشپړولې. هسې چې سينيور هيڅ څه له بهر نه نه پېرودل.

د يوه سينيور په بېلابېلو سيمو کې مبادله ايزو او سوداګري اړيکو شتون نه لاره، سينيورانو د دې لپاره چې لږ موندونکې ابرې لکه مالګه، زيتون غوړي، شراب او کتان هم په لاسرسي کې ولري او پېرودلو ته يې اړ نشي، په لرو واټنونکې کې يې زمکې، چې دا ابرې به يې لرلې، لاس ته رواړلې او سرفان يې اړباسل، چې دا لېږې لارې ووهي او خپل ارباب ته هغه ابرې راوړي. د بېلګې په توګه يو شمېر هالنډي خانانو د فرانسې په شمال او يا د هغو د رودونو په اوږدو کې، چې له جرمني نه تېرېدل، تاکستانونه لرل او هغو خپلې سړاوبې يې د هغو تاکستانونو له ډولاډولو شرابونو څخه ډکولې.

البته دې وضعې، چې هرې سيمې له اقتصادي پلوه خپلواکي لرله او د خارج له ابرو څخه بې نيازه

وه، د مبادلې او سوداګرۍ لپاره یې مساعده زمینه نه رامنځ ته کوله. په هماغه توګه مو چې وویل، ځیني لیکي، چې په دې دورکې هم سوداګرانو او بازارونو شتون لاره. موږ هم د دې موضوع نه منکر نه یوو، خو وایوو، د دې سوداګرانو شمېر ډېر لږ او د هغو سوداګري خورا کوچنې وه. په دې دورکې د ښکلا د شیانو او لږموندونکو خارجی ابرو سوداګرۍ، چې یو کوچنی لږکی د هغو ګاکان(مشتریان) وو، تر یوه هانده پورې رونق لرلو.

په ډېرو ښارونو کې ځینې بازارونه لېدل کېدل، خو ډېري یې کوچني سیمه ایز بازارونه وو، چې بزګر په میاشت کې یو ځل د خواړو ابرو د خرڅلا لپاره هغو ځایونو ته تلل. دې کوچنې سوداګرۍ په هغو موکوکې، چې قحطي به راتلله او د پړوس سیمې یې په بشپړه توګه ورانولې، تر څه هانده پورې یې ځان ته سر او بڼه نیوله. دغه بزګران، چې د ځانګړو پېښو په راتلو سره به یې کله کله په مبادلې لاس پورې کولو، نباید له هغو کسانو سره، چې دنده یې

سوداګري وه، غلط کړو. د دې «سوداګرانو» زيات شمېر هغه کسان وو، چې ګرځندويه وو، يانې يوه پنډه يې لرله او له يوه ښار نه بل ته د خرڅلا لپاره تلل.

**نوکولای شو د فيوډاليزم ځانګړتياوې تر ۱۱مې پېړۍ پورې داسې لنډې کړو:**

**د ټولنې اقتصاد په کليو تاوېدو او صنعت کوم رونق نه لاره. د هر سينيور سيمې خپلواکي لرله. د زراعت ابزې هم عمومن له دې کبله، چې د بزګرو د کار افزار بشپړ نه وو، کوم رونق نلرلو. مبادله او سوداګري ډېره لږه وه. ښارونه واړه او لږوګړي (لږ نفوسه) وو.**

*****

## ۱۶

## صنعت او سوداګري تر یوولسمې پېړۍ وروسته

د کرهنې پراختیا نـږدې لـه ۱۱مې پېړۍ څخـه پیـل شـوه، ولې چې ورو ورو د سـینیورانو او بزګرانـو لپـاره ثابتـه وضـعه رامـنځ تـه شـوه او لـه بلـه پلـوه د سرفانو ازادول پیل شول.

ولې یې سرفان ازادول؟

ولې چې سرفان پـه تـدریج سـره لـه ژونـده تنـګ راغلي وو او خپلې زمکې یې خوشې کولې او تښـتېدل او یا دا چې یاغي به شول او په خوځښت به یـې لاس پورې کاوه او حال دا چې د خپلو ازادېدو په بدل کې حاضـر وو، ډېـرې روپـې خپـل اربـاب تـه پـرې کـړي. اربابانو د دې لپاره چې د سـرفانو لـه خوځښـته او پـه همدې توګـه د دوی لـه تیښـتې څخـه یـې مخنیـوی کـړې وي او داسې کـار یـې کـړی وي، چـې هغـوی زمکې بـې بزګـره پـرې نـږدي، هغـوی یـې ازادول او زمکه یې دوی ته په اجارې ورکولـه. پـه دې توګـه د

سرفانو ستونزمنې وضعې لربښت موندلو، ولې چې اربابانو نور کولای نشول پر ازادو اجاره لرونکو باندې ماليې او بېګار تحميل کړي.

د همدې موضوع ګانو اغېزه وه، چې په کرهڼې کې رونق پيدا شو او نفوس مخ په ډېرېدو شو، هسې چې له ۱۰۹۰ څخه وروسته د قحطيو شمېر لږ شو. سوداګرۍ هم د ځينو پېښو له امله، چې لاندې يې څرګندوو، دود وموند:

د سکندناوي جزيرو يو شمېر خلک، چې په سمندري غلاوو بوخت وو، د انګستان څنډو ته يې د فرانسې له شمال لويديز ښار نرماندي له لارې يرغل وکړ، په هغو ځايو کې ميشته شوي وو. دوی وروسته له دې چې په انګلستان او فرانسې کې يې ځای ونيوه، ورو ورو يې له تېرو دودونو څخه لاس واخيست او د سمندري غلا پر ځای په سمندري سوداګرۍ بوخت شول. دوی په وچې لارې روسيې ته تګ راتګ وکړ او ځانونه يې قسطنطنيې او بغداد ته ورسول او د نړې د دې بېلابېلو برخو کالي يې اخيستل او خرڅول، خو د دوی سمندري سوداګرۍ

ډېر رونق لرلو. وړاندې له دې چې دوی په سمندري غلا بوخت شي، یوې سوداګریزې لارې په بالتیک سمندرګي کې شتون لاره. دوی دا لاره په ۱۹مې پېړۍ کې د خپلو غلاوو په وجه پرې کړه، خو په ۱۱مې پېړۍ کې، چې خپله په سوداګرۍ بوخت شول، دا لار یې بېرته پرانېستله.

په دې موکې کې په هالنډ او بلژیک کې هم سوداګرۍ یو څه دود ومونډ، ولې چې دا دوه هېوادونه د سمندر په څنډه پراته دي او څو رودونه له هغو څخه تېرېږي او سمندر ته لوېږي او دا دوه هېوادونه د دې رودونو له لارې مرکزي اروپا سره اړیکې مونډي. د هالنډ او بلژیک هېوادونو خپل کالي او د مرکزي اروپا کالی د سمندر له لارې انګستان او دنمارک ته وړل.

یو بل مرکز هم په همدې پېړۍ کې رامنځ ته شو او هغه ونیز ؤ، چې د ایټالیا په ختیز کې پروت دی او سوداګریز موقعیت لري.

د عیسی پیغمبر زیارت هم یوه سوداګریزه لار رامنځ ته کړه او وروسته له دې چې صلیبي جګړې

پېښې شوې او د اروپا خلک د ختيـز لـه تمـدن او د هغه ځای له کاليو سره اشنا شول، هسې چې وبه يې ګورو، له ختيز سره سوداګرۍ ته يې رونق ورکړ.

له ۱۱مې پېـړۍ څخـه د مـديتراني سـمندرګی د سوداګريزو اړيکو مرکز شو. اروپايي سوداګران د شام او چين د ورېښمنو، د ايران قالينو، د افريقې عـاج، د هندوستان درمل او د عربستان د عطرونو د رانېولـو لپاره د شام د هېواد بندر او د سکندريې بنـدرګي تـه راتلـل. لـه دې کبلـه قسـطنطيې اهميـت ومونـد او لويديزي اروپا سوداګرانو په هغه ځـای کـې پـه خپلـو کې په سيالۍ پيل وکړ.

هسې، چې يو فرانسـوی پروفيسـور ليکـي، چـې د ۱۰ – ۱۲ پېړيـو لمړنـي سـوداګران هماغـه بـې کـوره کسان وو، چې د خـوړو د غوښـتنې لپـاره دې خـوا او هغې خوا ته تلل. دې کسانو ورو ورو حس کړله، چې که په خپلو کې سره ټول شي، لږ خطرونه به دوی تـه پام شي او پـه ښـه توګـه کـولای شـي، کـالي يوسـي او راوړي. په دې توګه لمړي سوداګريز شرکتونه، چې د يادشوي پروفيسور په خبره له پېښې لټوونکـو کسـانو

څخه جوړ شوي وو، رامنځ ته شول او دوی بريالي شول، چې څه شتمني لاس ته راوړي. ورو ورو دغو شرکتونو پراختيا وموندله او دې نړۍ ګرځندويو وکولای شول لوی کاروانونه په لاره واچوي. په لمړي سر کې خلکو له دوی څخه ډار لرلو، خو په تدريج سره، له هغه ځايه چې د لېرې هېوادونو جنسونه يې له دوی څخه لاس ته راوړل، له هغو سره يې انس واخيست.

ورو ورو د سوداګريزو واټونو په څنډو کې سوداګريز ښارونه رامنځ ته شول او په دې توګه د ښاري ژوندانه رونق پيل شو. څومره چې سوداګرۍ لا ډېر رونق وموندە، د هغو کسانو شمېر، چې په دې کار پورې تړلي وو، ډېر شو. له هغه ځايه چې سوداګران په نه شلېدونکې توګه په سفرونو کې وو، لازمه وه، چې د هغو د لارو پر سر، په ځانګړې توګه په هغه ځايونو کې، چې څو واټونو په خپلو کې پيوستون موندە، تل داسې کسان وي، چې کالي او بار بنکته کړي. ببړې جوړې کړي، ګاډې سمې کړي

او د سوداګرانو نور احتیاجونه بشپړ کړي. له دې کبله د سوداګرانو د لارو په سر په مناسبو ځایونو کې یو شمېر دوډۍ پخوونکي، قصابان، خیاطان او داسې نور ټول شي.

په تدریج سره، چې شتمني ډېرېدې، د خلکو احتیاجات هم زیاتېدل او د لګښت کچه هم لوړېدله. له دې کبله لازم وه، چې د تولید اندازه هم پورته ولاړه شي. په پایله کې صنعت مخ په پراخېدو شو او لمړني صنعت چې رونق یې مونده، د ټوکر اوبدلو صنعت ؤ، هسې چې په ۱۲مې پېړۍ کې د میلان په ښار کې د ټوکرو ۶۰،۰۰۰ کارګرانو شتون لاره.

دې صنعت د هالنډ او بلژیک په هېوادونو کې هم پراختیا مونده، هسې چې دوی په همدې پېړۍ کې انګلستان ته وړین ټوکر لېږدول.

د اوسپنې صنعایعو په دې دور کې څه رونق نه درلوده، هسې چې وبه ګورو، چې د هغو رونق د ازادو ښارونو په دور کې د نویو اختراعاتو په زمانه کې پیل شو.

*****

## ۱۷

## د بورژوازۍ او ازادو ښارونو رامنځ ته کېدل

له دې کبله چې صنعت تر یوه هانده پورې رونق وموند او سوداګران پیدا شول، د ټولنې په وضعې کې توپیرونه رامنځ ته شول. تر هغه وخته پورې په ټولنې کې د دریمې طبقې برسېره اسیلو او روحانیانو هم شتون لاره، خو کله چې سوداګرۍ رونق وموند او د سوداګرانو او د هغوی د کاریګرو شمېر زیات شو او شتمني هم د دوی په لاسونو کې راغونډه شوه او ورو ورو یې ځواک وموند، بیا یې یوه ځانګړې طبقه جوړه کړه، چې هغه بورژاوزي بولي. دې بورژوا طبقې په تدریج سره ډېره شتمني ډېرۍ کړه او هماغه ډول چې فیوډالان د کلیو اربابان وو، بورژواګان هم د ښارونو اربابان شول.

بورژوا طبقې په پخواني فیوډالي تشکیلاوتو کې ځای نلرلو. په دې مانا چې فیوډالي اقتصاد کسبیان،

چې هماغه د بزګرانو وضعه يې لرله، د بېلې طبقې په توګــه نــه پېژندلــه. د ۱۱مــې پېــړۍ ســوداګران د سينيورانو د سيمې په اړوند پردي ګڼل کېدل او پـه حقيقت کې يې د ټولنې په شنډه کې ژوند کاوه.

دوی په حقيقت کې قانوني وضعه نـه درلودلـه او يوازې ټولنيز ضرورت ؤ، چې دوی يې منځ تـه راوړي وو او نه قانون – همدا بورژوازي، چې پـه قـانون کې يې ځای نلرلو، زمـوږ پخـوانې خبـرې تائيـدوي، چې **هغه څه چې ټـولنيزه وضـعه رامـنځ تـه کـوي، هغـه قــانون نـــه دی، بلکـــه ټـــولنيزې اړتيـــاوې دي. دا اړتياوې دي، چې ټولنيزه وضعه رامنځ ته کوي او د قانون د جوړېدو لامل ګرځي.**

ســينيوران ناهوبلــه وو، چــې د دې بورژواګـــانو ازادۍ ته درنښت ولري، خو دې ازادۍ ته يې قـانوني بنډ نـه ورکولـه او تـل يـې غوښـتل چې د کـاليو وړل راوړل په خپلو سيمو کې تر درانه کنتـرول او مقرراتـو لاندې راولي. له سوداګرانو مـاليې او جزيـه واخلـي. دې خبرې، چې سوداګري يې فلجولـه، د بورژواګـانو او فيوډالانـو تـر مـنځ دښـمني رامـنځ تـه کولـه، خـو

بورژواګان ورو ورو شتمن کېدل او برسېره پر دې کارګران او کسبيان يې تر شا لرل. له دې کبله يې هڅه وکړه، چې د ځان نه دفاع لپاره ښارونه ازاد کړي. البته د ښارونو ازادي په سولې او سپېڅلتيا او د فيوډالانو په رضايت سره نه شونې کېدله او له دې کبله عمومن د خوځښتونو او وينو تويېدو له لارې پلې کېدله، د بېلګې په توګه د ميلان ښار په ۱۰۶۷ م او د مارسي ښار په ۱۱۲۸م کې ازاد شول.

کېسه کوي، چې د فرانسې په يو ښار کې لوی سينيور د ښار له ازادۍ سره مخالفت وکړو. خلک وخوځېدل او وروسته له وهلو او ټکولو يې د سينيور په ماڼۍ يرغل وکړ. خو لوی سينيور له ډاره د خپل قصر سړاوبي ته وتښتېدو او په يوه ګلدان کې پټ شوی ؤ.

**عمومن داسې ده، چې کسان د خپل پوړ په تکيه خورا لويښت خرڅوي او باټې ولي، خو همدا چې له يوه لوی کار سره مخ شول، د هغه له مخې نه تښتي او بېوزلي او کوچنی والی څرګندوي. دوی د درمنده د سر نانځکې ته ورته دي، چې د ټولنې**

**په سر ولاړ دي او لـه هغـه ځایه چې ټـولنې د دوی حقیقت هېر کړی، له هغو څخه بېرېږي.**

په هر حال، لـه موضـوع نـه لېـرې نـه شـو. هغـه ښارونو ته به یې، چې په دې توګه د اقتصادي اړتیاوو له کبله ازادېدل، **کمون** ویل.

ښـارونه ازادېـدل او حـال دا چې کلي بیـا هـم د فیوډلانو تر لاسـبري لانـدې وو، نـو یـو جرمنـی متـل پیدا شو، چې وایی: «د ښار هوا انسان ازادوي».

*****

# ۱۸

## د کمون فیوډالي ښارونه

هغه توپیر چې نن د ښار او کلي تر منځ لیدل کېږي، په فیوډالي دور کې یې شتون نه لاره او د ښار ډېرو اوسېدونکو کلیو کې هم زمکې لرلې. له هغه ځایه چې صنعت ډېره وده کړې نه وه، نو د ژوندانه د دود له پلوه او د ماڼیو د جوړښت له پلوه د ښار او کلي تر منځ خورا توپیر نه ښکارېدو. سوداګرانو او ټولو کسانو، چې په فیوډالي ټولنې کې یې ځای نه لرلو، هر پېټ (قشر) په جلا سیمې کې ژوند کاوه، د بېلګې په توګه قصابانو، وسله جوړونکو، خیاطانو، هر یوه یوه مېنه او یا کوڅه لرله.

د هر پېټ لپاره ځانګړو مقرراتو هم شتون لاره. هر پېټ یوه ټولنه لرله، چې **کارپورېشن** نومېده. له کارپورېشن څخه موخه دوه شیان وو: یوه دا چې خپل غړي د بهرنیو کسبیانو له سیالۍ نه وساتي، بلـه

دا چې د خپلې دندې لپاره پرېکړې و ټاکي، تر څو چې هم د جنسونو ښکلا تر یوه هانده پورې وساتل شي او پېرودونکي ولري.

ښکاره ده، چې دا دواړې موخې په فیوډالي دور کې، چې لویو صنعتونو شتون نه لاره او کلیو ښارونو ته ډېره اړتیا نلرله او د اړتیاؤ لمنه هم پراخه نه وه، پلې کېدلې او اصولن پورتنې پرېکړې هم د همدې لاملونو له کبله رامنځ ته شوې وې. د فیوډالي دودونو پر بنسټ هېڅ بهرني کس حق نلرلو، یوه ښارته وردننه شي او په کوم کسب لاس پورې کړي.

په کارپورېشن کې غړیتوب میراثي ؤ او شاګردانو د څو کلونو زده کړې او د ځانګړو دودونو له پلې کولو څخه وروسته کولای شول د ښوونکي درجې ته ورسېږي.

نو که د کتاب تېر څپرکی په پام کې ولرو، نو وینو، چې صنعت او ازادې سوداګرې په فیوډالي دور کې شتون نه لاره او کولای یې هم نشول شتون ولري.

خو ـ په هماغه توګه مو چې په تېر څپرکي کې وويل – ښـارونه ورو ورو مـخ پـه رونـق روان شـول او بورژواګان منځ ته راغلل او د ښـارونو پـه ازادولـو يـې پيل وکړ، تر څو له فيوډالي مقرراتو څخه ازاد واوسـي او وکولای شي خپلې سوداګرۍ ته پراختيا ورکړي.

کمون په حقيقت کې د بورژواګـانو پـه خپلـو کې شرکت او ګډ کـار ؤ. دې بورژواګـانو بـه کسـم يـادولو، چې د يوبل امنيت وساتي. په کمون کې د ګډون لـه شرطونو څخه دا ؤ، چې کـه د ښـار او خـوا او شـا يـو اوسېدونکی يې د پرديو د يرغل موخـه وګرځـي، ټـول له هغه نه ملاتړ وکړي او که چا د کمون له پرېکړو نه سرغړونه کړې وای، د هغه نه يې جريمه اخيستله او هغه يې په مرچو(استحکاماتو) باندې لګوله، تـر څـو ښار په لازمه موکه کې له دفاع څخه پاتې رانشي.

د ازادو ښارونو چارواکي په خپله کسـبيانو ټاکـل او ټاکنې د ښلګې په توګه په لاندې ډول پلې کېـدلې: هر پېټ دوه کسه د خپلو منځو نه ټاکل او که د پېټونو شمېر دوولس ؤ، په دې توګه څلورويشت کسه ټاکـل کېدل. دې څلورويشتو کسانو نور لـس کسـه او هغـو

لسو کسانو نور لس کسان او دې شلو کسانو بیا لس نوره کسان ټاکل او دې دېرشو کسانو د عمده چارواکو ټاکل ترسره کول. د ښار عمده چارواکي هر کال بدلېدل او نویو ټاکل شویو ته یې باید حساب ورکړی وی.

*****

## ۱۹

## د صنعت او سوداګرۍ پراختیا فیوډالي اصول ړنګ کړل

ومو ویل، چې په فیوډالی دور کې تر ۱۳مې پېړۍ پورې صنعت او سوداګري خورا لږه وه. څومره چې صنعت او سوداګرۍ رونق ومونده، لا ډېره څرګندېدله، چې فیوډالی اصول د ټولنې پرمخ تللي وضعیت سره جوړښت نلري. د دې لپاره چې دا موضوع روښانه شي، بېلګه راوړو.

انګلستان له لمړیو هېوادونو څخه ؤ چې د صنعت خاوند وګرځېده. له ۱۴مې پېړۍ د مخه هم هغسې مو چې وویل، وړۍ یې له انګلستان څخه هالنډ او بلژیک ته وړلې او د هغه هېوادونو په کارخانو کې به یې ټوکرې ځینې اوبدلې. ورو ورو ټوکر اوبدلو په خپله انګلستان ته هم سرایت وکړ، په ځانګړې توګه کله چې د هالنډ او بلژیک یو شمېر بورژواګان له سینیورانو سره د جګړو له امله

انګلستان ته ولاړل او خپله سرمایه یې هلته په کار واچوله. د انګلستان دولت د دې لپاره چې خپل داخلي صنعت نه یې ملاتړ کړی وي، په کال ۱۳۳۷م کې یې په دې باندې بندیز ولګاوه، چې څوک دې وړی او وړین ټوکرونه له انګلستان نه بهر ولېږي، خو یو څه موده وروسته یې په دې قانون کې یو څه بدلون راوستو او د یاد شویو کالیو بهر ته وړل یې د ګمرکي بیو په بدل کې مجاز وګڼل. د انګلستان دولت د دې لپاره چې د ټوکړ اوبدلو لمړني مواد له هېواد څخه بهر نشي، د وړیو ګمرکي بیه یې ٪۳۳ ټاکلې وه او په دې حال کې چې د وړینو ټوکرو ګمرکي بیه له ٪۲ څخه زیاته نه وه. البته دا قانون د قاچاقو د دودېدلو لامل وګرځېده او سوداګران د دې لپاره چې د دولت په سر شرعی خولی کېږدي، په دې یې پیل وکړ، چې پسونه اصولن بهر ته وبسي، خو په تدریج سره د انګلستان د ټوکر اوبدلو صنعت ځواکمن شوی ؤ او کولای یې شول له نورو ځایونو سره سیالي وکړي. له دې کبله د وړیو درنه تعرفه د انګلستان دولت لخوا لغوه شوه.

د ټوکر اوبدلو صنعت ډېرو چارو ته اړه لري، د ببلګې په توګه وړی باید پاکې کړي، رنګ ورکړي، و يې سکڼي، ټوګر واوبدي، د ټوکر غوړ ببرته کړي او داسې نور...

د فيوډالي پرېګړو (مقرراتو) پر بنسټ له دې چارو څخه هر يوه بايد يو جلا كارپوريشن سرته رسولې وای او په دې توګه د وړيو د پېرودلو او پلورلو او د هغو په ټوكرو بدلولو لپاره ډېرې ستونزې پېښېدلې او د دې لپاه چې يو سپارښت سرته ورسوي، د ببلګې په توګه بايد د ۱۵ کارپورېشنونو موافقت ترلاسه کړي.

بورژواګان ناهوبله شول، په کومه توګه بنديزونه له مخې نه اوچت كړي او په پای کې يې کارخونې غالبن د ښار نه بهر داسې ځای ته يووړې، چې د کارپوربشنونو تر اغېزې لاندې نه وې او د دې تدبير سره يې په هماغه ۱۴مې پېړۍ کې وکولای شول، چې د ۲۰۰ ببلاببلو کسبونو کاریګر د يوه چت نه لاندې په کار بوخت كړي او ۶۰۰ کاریګر په يوه ځای کې سره ټول کړي.

نو وینو، چې ورو ورو د ټولنې غوښتنو هسې بڼه نیوله، چې له فیوډالي مقرراتو سره یې جوړښت نه موندلو او لازمه وه، چې یاد شوي مقررات بدلون ومومي.

په فیوډالي دور کې هر څوک چې په کارپوریشن کې دننه ؤ، برخه لیک یې خوندي کېدو، خو ګټې یې محدودې وې، ولې چې د پېرودلو او پلورولو بیې په خپله کارپوریشن ټاکلې او له دې کبله هیڅ چا کولای نشول، چې په یوې دوو معاملو سره د خورا ډېرې سرمایې خاوند شي. البته په هغه موکه کې هم دلالانو او سوداګرانو دوکې کولې او نا مشروع ګټه یې ترلاسه کوله، خو د دوی د هغه وخت ګټه د هغې ګټې سره چې د صنعت د دور سوداګرانو لاس ته راوړله، د پرتلې وړ نه وه. له دې کبله خلک د سوداګرۍ خوا ته جلب شول او هماغه کسان، چې تر اوسه پورې یې خپل ژوندون په پېښلټون (ماجراجویی)، نړېوالې ګرځندوینې او وزګارتیا تېرولو، په کار پسې ولوېدل.

به دې ځای کې ښه ده، چې د همدې کسانو له ډلې نه د يوه کېسه، چې ډېره شتمني يې غونډه کړه، نکل کړو:

**ريچارد ويتينګن** هغه يتم ماشوم ؤ، چې د يوه سوداګر په کور کې چوپړ ؤ. په هغه زمانه کې دود ؤ، چې هرکله به يوه سوداګر خپله بېړۍ لېرو سيمو ته لېږله، خپل هر چوپړ ته يې اجازه ورکوله، چې خپل يو شی په بېړۍ کې کېږدي او خپل بخت وازمويي.

ريچارد په ټوله نړۍ کې يوه پېشو لرله او هغه يې د خپل ارباب په بېړۍ کې کېښوه. د پېښې له مخې کله چې بېړۍ په يوې لېرې سيمې کې لنګر واچاوه، ويې کتل، چې هلته موږک دومره ډېر دي، چې د پاچا ماڼې يې له زيار سره مخ کړې ده، خو په هغه سيمې کې کومه پېشو نه مونډل کېده. د هغه هېواد پاچا د هغې بېړۍ د پېشو له کتنو او د هغې د هنرښودنې څخه هومره خوښ شو، چې پېشو يې د بېړۍ د ټولو مالونو په بيه وپېرودله. په دې توګه ريچارد ويتينګن ناڅاپه شتمن شو.

دا کېسه که افسانه هم وي، خو څرګندوي، چې د ريچارد ويتنګن شتمني په اسانه سره لاس ته راغلې ده. دا سړې د خپلې شتمنۍ له کبله د لاردانو په ډله کې راغی او پيسې يې هومره ډېرې شوې، چې د انګلستان پاچا له ده نه پور واخيست.

د لويو سوداګرو او ناڅاپه شتمنيو له کبله ؤ، چې د کارپوريشنو وضعې بدلون ومونډ، د ښېلګې په توګه مساوات، چې د کارپوريشن يوه ځانګړتيا وه، له منځه ولاړه. اوس نو د کاليو ښکلا او د جشنونو دودونه هومره وو، چې يوازې شتمنو کسانو کولای شول له هغو نه برخمن شي.

کېسه کوي، چې د شرابو د سوداګرانو کارپوريشن هومره شتمن شوی ؤ، چې له پنځو پاچايانو څخه يې په يوه ځای هرکلی وکړ!

په دې توګه د هغو کسبيانو، چې پخوا شونې وه، چې د ښوونکي درجې ته ورسيږي، د پر مختګ مخه بنده شوه او د دې لپاره چې له ځانونو نه يې دفاع کړې وي، د «کارګرانو د کارپوريشنونو» په تشکيل

يې لاس پورې کړ، تر څو کرکه جـن اربابـان لـه ځانـه لېرې کړي. په پایله کې دوې ځـانګړې طبقې رامـنځ ته شوې.

*****

## ۲۰

## له انګلستان څخه د یهودانو اېستل

مسیحیانو د پیسو په سود ورکول حرام ګڼل او له هغه ځایه چې په فیوډالي دورکې د معاملو د کوچني والي او لګښت له امله د سود ورکولو او اخیستلو ته اړتیا نه پیدا کېده، دا باور د مننې وړ ؤ، خو کله چې فیوډالي وضعه مخ په بدلون شوه، صنعت رامنځ ته شو او پیسو نوې پوړ وموندە، نور دې باور د ژوندانه له واقعیت سره سمون نه موندلو. لمړني کسانو چې وکولای شول ځانوته د ژوندانه له واقعیت سره سمون ورکړي، یهودان وو، چې په صنعت او سوداګرۍ بوخت شول او له سود ورکولو او اخیستله څخه یې ډډه نه کوله. ورو ورو صنعت او سوداګرۍ پرمختګ کولو، د انګلستان لویو کورنیو پیسو ته لا ډېره اړتیا پیدا کوله او بله هېڅ هوبله یې، پرته له دې نه چې یهودي سوداګرو ته لاس په لمن

شي، نلرله. خو دا يهودان بزګر نه وو، چې په ځمکو پورې تړلي او سينيورانو ته اېل واوسي او عمومن يې په ښارونو کې ژوند کاوه. له دې کبله د انګلستان پاچايانو د دې لپاره چې د دوی له پيسونه ګټه پورته کړي، دوی يې په خپله ننګه کې ونيول او په دې توګه يې خپل واقعي ځواک يانې اقتصادي ځواک د بارنانو په پرتله پورته يووړ. د تاريخ ليکونکو تر منځ پېژندل شوې ده، چې وايي: «د يهودانو په صندکونو کې وه، چې د نرماند پاچايانو د بارنانو د اېل کولو ځواک لاس ته راوړ».

خو ورو ورو د يهودانو اقتصادي ځواک هومره ډېر شو، چې د انګلستان د لويو کورنيو او اسيلانو خيال له يې د ناهوساينې لاملونه چمتو کړل و په هغه کې شول چې په کومه توګه ځانونه د هغو پورونو له بنده، چې له يهودانو څخه يې اخيستي وو، خلاص کړي. په پای کې يې له دې نه بله هېڅ ښه هوبله و نه موندله، چې د مذهب توپير پلمه کړي او يهودان له انګلستان څخه بهر وغورځوي او همدا کار يې په ۱۲۹۰م کال کې سرته ورسولو.

دا پېښه د دې خبرې لـه دليلونـو څخـه يـو دی، چې **مذهبې کشالې عمومن مالي او اقتصـادي ولـې لري.**

*****

## ۲۱

## د کار د قانون منځ ته راتلل

له هغه ځایه چې د سینیورانو فشار د بزګرانو په مټونو خورا دروند او له بله پلوه د کار رونق هر ورځ پورته تللو او کارخونو کارګرانو ته اړتیا لرله، سرفان له کلیو څخه تښتول او ښارونو ته یې مخ کولو. هسې چې د انګلستان د ۱۴مې پېړۍ د تښتېدلو بزګرانو شمېر هم هومره ډېر ؤ، چې د تښتېدلو مریانو شمېر د ۱۹مې پېړۍ په امریکې کې.

د پېښې له مخې په ۱۳۴۹ کال کې درنه ناروغي راغله او اروپایې ونېوله او د اروپا او انګلستان نږدې ۲۵ میلیونه اوسېدونکي یې له منځه یووړل.

له دې ناروغۍ نه دوې پایلې لاس ته راغلې: د نفوس شمېر کمښت وموند. هغه بزګران چې ژوندي پاتې شول، څه شتمن شول او څه پراخې زمکې یې لاس ته ورولوېدې.

په دې توګه له هغه ځایه چې د سینیور اړتیا بزګر ته زیاته شوه او زمکې ته د بزګر اړتیا لږه شوه، نور بزګر نه حاضرېدل، چې په اربابي زمکو کې په کرلو بوخت شي او د اربابانو ځورول وزغمي. له دې کبله سینیوران، چې د کرنې لپاره یې څوک نلرل، ناچاره کېدل، زمکې په خپله سرفانو ته اجاره ورکړي او یا دا چې اصولن زمکې په لږه بیه وپلوري.

په پای کې سینیورانو لاس په کلکه پرېکړه پورې کړ او د «کار قانون» یې وضع کړ. دا قانون د ټولو هغه قانونونو په توګه، چې د لږکیو لخوا وضع کېږي، د بزګرو پرګنو پر ضد ؤ؛ د دې قانون له امله:

۱- هر څوک چې عمر یې له شپېتو کلو نه ټیټ ؤ، باید به هغه مزد، چې له ۱۳۴۷م کال نه مخکې دود ؤ، په کرهڼه بوخت شي.

۲ – هر سینیور به چې له دې نه پورته لاسمزد پرې کولو، د غرامت په ورکولو محکومېده.

۳ – سینور حق لاره، خپل سرفان کار ته اړ کړي او که هغو ونه منله، بندي یې کړي.

دا د هغو زلندو قانونونو يوه بېلګه ده، چې د زيار اېستونکو پرګنو د بنديوانۍ لپاره وضع شوی دی! د دې ډول قانونونو اغېزې لا هم د نړۍ په هېوادونو کې، په ځانګړې توګه زموږ په هېواد کې، چې له نورو څخه وروسته پاتې يوو، پاتې دي. آيا دا هغه قانونونه دي، چې د ستمګرو عدليه او امنيه ځواکونه د هغه نه په بشپړه خوند او رنګ يادونه کوي او هغه مقدس ګڼي؟ آيا په رښتيا سره کولای شو دغه حق وژونکي قانونونه مقدس وبولو؟

آيا ډاکټر اراني، چې په جنايي محکمې کې ويل: «يوازې هغه قانون مقدس دی، چې د پرګنو د ګټو ساتونکی وي»، حق نلرلو؟

*****

## ۲۲

## د بزګرو خوځښت یا په انګلستان کې د سرواژ راپرځېدل

د سـینیورانو فشـار لـه یـوې خـوا او د فـابریکو جذبې له بلې خوا د انګلستان بزګر اړباسل، چې دې نه زغمونکې وضعې ته پای ورکړي. په پای کې بزګرو په ۱۳۸۱م کال کې لاس په یوه لوی خوځښت وواهه او دوکان(دوک خان ته وایي) او د پاچا نور چوپړ یې ووژل.

د بزګرو اصلی فکر دا ؤ، چې د خپل ځـور لیکلي آثار لـه منځـه یوسي او هـر چېرې بـه یـې چې کـوم پرېکړه لیک لاس ته راوړلو، اور یې وراچولو.

د انګلستان لویو کورنیو ونکـولای شـول د بزګـرو پـه وړانـدې ودرېـږي. یـوه ځـل د لویښـت لـه پـوړه رابنکته شول او وتښتېدل او په ځګړو کې پټ شـول. خو بزګـر ښـارونو تـه ولاړل او بورژواګـانو لـه هغـو نـه نسبتن ښه هرکلی وکړ. په پای کې بزګرو لندن ته مخ

راوړ او لـه هغـه ځایـه چـې د انګلسـتان پاچـا **دوهـم ریچـارد** لا هلـک ؤ، انـد یـې کولـو، چـې دوی بـه د سینیورانو له منګلو خلاص کړي.

د بزګرو پوځ لندن ته ننووت او اسیلې کورنې یې ووژلې. خو پاچا ته یې موکه ورکړه او له هغـه نـه یـې وغوښتل، چې کتنه ورسره وکـړي. پادشـاه لـه بزګـرو سره وکتل او هوډ یـې وکـړ، چـې د هغـو هیلـې سـرته ورسـوي. مسـتوفیانو هـم د رنګینـو او خونـدورو فرمانونو په لیکلو پیل وکړ. د دې ساده ډبـو بزګرانـو هرې یوې ډلې به چې د پاچا دا فرمـان تـر لاسـه کـړ، په خندا او خوښۍ سره به بریالی لـه لنـدن نـه ووتـل. کلـه چـې شـمېر یـې لـږ شـو او لـه څـو زرو نـه زیـات کسان پاتې نشول، پاچا بیـا کتلـو وعـده ورکـړه او لـه خپـل پـوځي ځـواک سـره د کتلـو ځـای تـه راغـی، د بزګرو مشر یې مخې ته ورغی. کله چې نـږدې شـو، د پاچا یوه ملګري پـه هغـې وسلـې سـره، چـې تـر کـالیو لاندې یې پټه کړې وه، په بشـپړه نـه نـارینتوب سـره یـې د هغـه پـه سـر ګـوزار کـړه او هغـه یـې پـه زمکـه راوپرځولو. د پاچا ملګري د هغه مشر ګېرچاپېره ټول

شول، تر څو بزګر ونه ويني، چې مشر يې وژل شوی دی. خو بزګرو وکتل او په خوځښت راغلل. پاچا خپلو ملګرو ته امر وکړ، چې له خپل ځای نه ونه خوځيږي او خپله يې آس رهې کړ او د بزګرو مخې ته راغی، هغو ته يې وويل: تاسو پرته له مانه بل مشر نه لرئ. زه ستاسو پاچا يم. ډاډه اوسئ.

خلکو، چې د دې هلک خبره ولېدله او اند يې نه کاوه، چې دومره کرغېړنتوب به دهغه په باطن کې وي، هغه ته تسليم شول او ريچارد د هغو په سرکې ودرېدو.

په دې توګه د بزګرو خوځښت هسې وشېندل شو. هغه وخت پاچا او د هغه قاضيان کليو ته ولوېدل او په وژنو يې پيل وکړ او خلک يې سل سل کسه په دار ووهل او دې وژنو تر يوې مودې پورې پايښت لرله! دا ؤ د پاچا چلند، چې رعيت په هغه رحم وکړ او ده رعيت ته ډاډګېرنه ورکړه!

**پايله:**

**هېڅ ازادي په هېڅ هېواد کې پرته له ځان ښندلو لاس ته راغلې نه ده.**

**خیانت، ناځواني او خپرنتوب د هغو کسانو له ځانګړتیاؤ څخه دي، چې ولس ته زور وايي، خو د دغه ځانګړتیاوو مخ تل چوپړ مورخان غواړي پټ کړي. زیاراېستونکي پرګنې باید هېڅکله به هوډونو ونه غولېږي او نباید رحم او زړه سواندی ته ماتل واوسي.**

*****

د بزګرو خوځښت په هغې دردوونکې وضعې پای موند، خو د ولس د خپلواکۍ روح یې ځرګنده کړه. له بله پلوه د صنعت رامنځ ته کېدلو او کارګرانو ته اړتیا، هسې چې وروسته به یې ځرګنده کړو، ایجابوله، چې د بزګرو ازادي پلې شي.

له دې کبله د کار قانون د ۱۴مې پېړۍ په پای کې له اعتباره ولوېده او سرواژ اصولن د **تودر** کورنۍ د سلطنت په زمانې (۱۴۸۵ – ۱۶۰۳) کې له انګلستان څخه تغر تول کړ او د ۱۶مې پېړۍ په پای او د ۱۷مې پېړۍ په پیل کې دا یو قانوني اصل شو، چې هر انګریز وګړی ازاد دی.

*****

## ۲۳

## د سرفانو په وضعې باندې د ټوکر اوبدلو صنعت اغېزه

کله چې د ټوکر اوبدلو صنعت په انګلستان کې مخ په ودې شو، ښکاره ده، چې وړیو ته لا ډېره اړتیا رامنځ ته شوه او لازمه شوه، چې څرځایونه لا پراخ، پسونه لا ډېر او وړۍ لا پرېمانه شي. له دې کبله خانانو په دې باندې پیل وکړ، چې کروندې په څرځایونو بدلې کړي او بزګر وشړي او په ځانګړې توګه د سرفانو ازادېدل یې پلمه کړل، هغوی یې بې وزلي کړل، هسې چې په لږه موده کې پسونه د بزګرو کورنیو ځای ناستي شول. د هغه دور یو لیکوال وایي: «پسه پخوا ډېر سر په لاره ځناور ؤ، خو اوس هر څه ورانوي او هر څه خوري، ان سړي». هغه ښتې چې د اتم هانري په وخت (۱۴۰۹ – ۱۵۴۶) کې د مذهبي دښمنیو په نامه د روحانیانو سره

پېښېږي شوې او د هغو د وژلو لامل وګرځېدې، د همدې لپاره وې، چې د کليسا زمکې د هغو له منګولو نه راوباسي او په څرځايونو يې بدلې کړي.

البته څرځای ته اړتيا، چې د ټوکر اوبدلو د صنعت د ودې په اغېزه رامنځ ته شوې وه، د سرفانو ازادۍ سره يې مرسته وکړه. خو د هغو ازادي په هغه توګه ترسره شوه، چې بيان مو کړله. له دې کبله هغو ستم ځپلو بيا هم لاس په خوځښت وواهه، خو داځل يې هم خوځښت په عام وژنې سره پای وموند.

هغه بزګر، چې په دې توګه له خپلو پلارنيو کروندو څخه شړل شوي وو، غالبن لاس يې په سوال، وزګارګرځېدو او يا په غلا پورې کولو. خو دا وضعه د فابريکه لرونکو په ګټه وه، چې ورځ په ورځ يې کارګر ته لا اړتيا موندله.

هغو داسې کسانو ته اړتيا لرله، چې ازاد وي، يانې په زمکې يا ارباب پورې تړلی نه وي او په کم مزد سره په کار بوخت شي. دا وه د فابريکه لرونکو

په ژبه د ازادۍ مانا! لـه دې کبلـه د وزګـارانو پـر ضـد درانه قانونونه وضعه شول او هغـو تـه يـې کلکـه سـزا ورکوله، تر څو د فـابريکې پـه لـور وشـړل شـي. نـو، د سرف ازادي په حقيقت کې دا وه، چـې پـه ازاده توګـه د فابريکه لرونکي چوپړ شي.

په دې توګه هغه بدلون چې د ټوکراوبدلو صنعت له امله د سرفانو په وضعيت کې ورکـړی شـو، داسـې لنډولای شو:

په فيوډالي دور کې د بزګر د کرنې اسباب د ده په خپـل لاس کې وو او پـه بنسـټيزه توګـه يـې کـولای نشول، چه هغه له هغې زمکې څخـه، چـې کرنـه يـې پـرې کولـه بهـر کـړي، خـو د بزګـر ازادي داسـې بڼـه ومونده، چې زمکـه يـې لـه هغـه نـه واخيسـته او يـوه برخه زمکه يې د اجارې لاس ته راوړلـو پـه بـدل کـې هغه ته پرېښودله. د بزګرو ګـڼ شـمېر هـم پـه وزګـار ګرځېدلو او غلا سر شول او يا پـه چوپړتيـا کـې اختـه شول.

*****

په دې توګه انګلستان د صنعت مرحلې ته ورسېدو. موږ له دې کبله د انګلستان په تاریخ کې ورانـدې لاړو، چې انګلستان تـر نـورو ورانـدې دې مرحلې ته ګام کېښود. اوس لږشانې شاته ستنېږو او نورو اروپايي ولسونو او په ځانګړې توګه له فرانسې څخه خبرې کوو.

*****

## ۲۴

## د ۱۳مې پېړۍ تر پایه پورې فیودالي دور ته یوه بشپړه کتنه

### د مدیترانې د سوداګرۍ تړل کېدل:

په پخوانۍ نړۍ کې، یانې د روم په دور کې د مدیترانې سمندرګې د داخلي سمندرګي په توګه ؤ، ولې چې د هغه ټولې څنډې د روم دولت په خپلې ولکې کې لرلې او د شا او خوا تمدنونو د مدیترانې د سمندرګي له لارې له یو بل سره اړیکې لرلې او هغه سمندرګی د هغو دجنسونو او فکرونو د وړو راوړو وزله وه. په دې دور کې د هغه ټولو هېوادونو فعالیتونه، چې د برتانیا د جزیرو او فرات د سیند تر منځ پراته وو، د مدیترانې سمندرګي په لور وو.

وروسته له هغه چې جرمنانو د روم پر دولت باندې یرغل وکړ، بیا هم د مدیترانې سمندرګی د رونق خاوند ؤ، ولې چې بیا هم ایټالیا، افریقې، اسپانیې او فرانسې د دې سمندرګي له لارې د

بیزانس له امپراطورۍ (ختیز روم، چې قسطنطنیه یې په ولکې کې لرله) سره اړیکې لرلې. د دې وضعیت له امله یو اقتصادی ژوند رامنځ ته شو، چې په حقیقت کې د پخواني دور مستقیمه لکۍ وه، د بېلګې په توګه د سوریې اوسېدونکو له پنځمې نه تر اتمې پېړۍ پورې د لویدیزو بندرونو او د مصر او کوچنې آسیا د بندرونو تر منځ سوداګریزې اړیکې لرلې.

خو وروسته له هغې چې په اوومې پېړۍ کې مسلمانان ډګر ته راننوتل او د مریترانې ختیزې، سهېلي او لویدیزې څنډې یې فتحه کړلې او د قسطنطنیې ښار په ۷۱۹م زېږیز کې د دوی لاس ته ولوېدو، د سوداګرۍ وضعه بدله شوه او په حقیقت کې د اروپا سوداګري په مدیترانې که پای ته ورسېده. له دې نه وروسته د مدیترانې سمندرګی نه یوازې چې د تمدنونو اړیکه نه ؤ، بلکه د هغو تر منځ یو بند ګڼل کېده. پخوا د مدیترانې په ټولو څنډو کې یو تمدن شتون لاره، خو اوس دوه تمدنه رامنځ ته شوي وو: رومي تمدن په شمال کې؛ اسلامي تمدن

په ختیز، سهېل او لویدیز کې. دا دوه تمدنونه په خپلو کې غلیمان وو او د هغو یو پر بل باندې یرغل پخوانی اقتصادي اندولتیا له منځه یووړو او اقتصادي فعالیت له مدیترانې څخه د بغداد په خوا لور شو.

د اتمې پېړۍ په ترڅ کې د مدیترانې د سوداګرۍ بندېدل لامل شول، چې سواګر له منځه ولاړ شي او ښاري ژوند، چې د هغو په لاس کې ساتل کېده، مخ په پرځېدو شي. په پایله کې عمومي بېوزلي څرګنده شوه او د هغې یوه نښه دا وه، چې د سپینو زرو روپې د سرو زرو روپو پر ځای کېناستلې.

**د سوداګرۍ د بېرته رونق پیل:** کله چې د مدیترانې ختیز او سهېل د مسلمانانو په لاس کې ولوېدل، د ختیز روم او ایټالیا سوداګرو اړیکې هم له سوریې، د افریقې له شمال او د اسپانیې له سهېل سره وشلېدې او یوازې د لویدیز او قسطنطنیې مسیحي بندرونو سره یې (وړاندې له دې چې د مسلمانانو لاس ته ولوېږي) سوداګري کوله.

خو د دې خبرې لامل، چې مذهبي توپير ؤ، سوداګرو ته دومره ځواکمن نه ؤ، چې وکولای شي هغوی د ډېرې مودې لپاره د مسلمانانو سره سوداګرۍ نه منع کړي.

**تل لېدل شوي، چې د پيسو ځواک روپۍ لمنانځونکو وګړو ته په څو ځلو د مذهب له ځواکه ډېر دی او عمومن د مذهب ځواک يوازې د دې لپاره، چې له هغو سره د روپيو په موندلو کې مرسته وکړي، ورباندې ګران دی.**

له دې کبله سره د دې چې د مديترانې ختيز، سهېل او لوېديز د مسيحيانو په خبره له کفارو سره وو، د هماغه نونسمې پېړۍ له پای نه لېدل کېږي، چې خپلې اړيکې يې له دې سيمې سره له سره ټينګې کړې او ورځ په ورځ يې پراختيا ورکړه.

**دې روپۍ لمنانځونکو سوداګرو د خپلوګاکانو له مذهب سره، په دې شرط چې ښې روپۍ ورکړي، څه کار نلرلو.**

روپۍ لمانځل، چې مسيحي مذهب يې په کلکه محکوموي، په دې دورکې په کلکه توګه څرګند

شول او ونیزي سوداګرو اسلاو ځوانان د دالماسۍ له ښځوونه پېرودل او یا يې غلا کول او په بېړیو کې يې په مصر او سوریې کې د مسلمانانو حرمونو خوا ته وړل او خرڅول. د مریانو سوداګرۍ په دې دور کې ونیزي سوداګرو ته هم هومره ګټه ورسوله، چې د تورو خرڅولو په اتلسمې پېړۍ کې د فرانسې او انګرېز تجارانو ته. **البته مذهب دا چارې منع کولې، خو د چا غوږ د اورېدو پوروړی نه ؤ او سوداګرو هغه ګڼ شمېرګټه يې چې له دې لارې وړله، نه یوازې د مجاز اوسېدلو دلیل او بلکه د هغه د مقدس اوسېدلو دلیل بللو. هر کله چې داسې کسانو ته د خرافاتو په ضد د تمدن او فرهنګ نه خبرې وکړې، وايي، دلته د استدلال ځای نشته، خو دوی خپله په دې موکه کې، چې ګټو يې غوښتنه کوله، د مذهب پر ضد استدلال کولو.**

**د بورژوازۍ ازادي:** د بوژوازۍ لپاره تر ټولو ضروري شی ازادي ده، ولې چې بورژواګان – پرته له دې چې وکولای شي له یوه ځای نه بل ته لاړ شي، هوډ وسپاري او هوډ واخلي، په خپلو مالونو کې د

تصرف هرډول حق ولري – نشي کولای سوداګري وکړي. دا ازادي د سوداګرۍ لپاره لازمې دي.

خو دې ازاديو په فيوډالي جوړښت کې شتون نه لاره، له دې کبله بورژواګانو د دې ازاديو دلاس ته راوړو لپاره هڅې وکړې او په اوومې پېړۍ کې يې د سرفانو په مرسته خطرناک خوځښتونه منځ ته راوړل.

هغو د سرفانو ازادي هم د همدې خپلو اړتياؤ د سرته رسولو لپاره غوښتله او اصولن نبايد هېر کړو، چې **بورژواګانو ازادي په مطلقه توګه او د يوه طبيعي حق په ډول نه غوښتله، بلکه له دې کبله چې ښېګڼې يې لرلې او يوګټه ور حق ؤ، د هغې تيګه يې به خپل ټټر وهله.** موږ به وروسته د دې اصل په هکله خبرې وکړو.

په هر حال، د بورژواګانو د هڅو اغېزه وه، چې ورو ورو ازادي په ښارونو کې، هسې مو چې وړاندې څرګنده کړه، پيل شوه او په تدريج سره دود شوه، چې که چا د يوه کال او يوې ورځې لپاره په ښار کې ژوند کړې وای، ازادېدو.

**د بورژوازی قانون:** ازادی د بورژواګانو لمړنۍ اړتیا وه، خو نورې اړتیاوې یې هم لرلې. د فیوډالۍ دور حقونو پېچلي دودونه لرل او وګړي یې د سینیورانو د ارادې اېل ګرځول.

په فیوډالي دور کې، کله د دې لپاره چې یوه داوه فیصله کړي، لازمه وه، چې دواړه خواوې په خپلو کې مخاوی (مقابله - دوئل) وکړي او هر څوک چې بریالی شي، حق دې له هغه سره وي. په دې دور کې قاضیان عمومن د بزګرو د ټولنې نه ټاکل کېدل او دا وګړي یوازې د هغه چا د دودونو او رواجونو سره، چې په کلیو کې یې د کار او یا د زمکې ملکیت لپاره ژوند کاوه، آشنا وو او د ښاري ژوند نه یې کافي خبر نه لرلو.

له دې کبله کله چې بورژواګان منځ ته راغلل او ښارونو شتون وموند، کولای یې نشول خپل ښاري ژوند له دې حقونو او دې دودونو سره، چې د دوی له وضعې سره جوړ نه راتلل، اداره کړي. بورژواګانو هسې حقونو ته اړتیا لرله، چې پېښې په ساده توګه حلې کړي او د دواړو خواوو د ادعا د زبات لاره په

اسـانه توګـه لاس تـه راوړي او د بورژواګـانو د ژونـد اړتیاوې په ښه توګه په پام کې ولري.

په دې توګه وینو، چې د یوولسمې پېړۍ په پیـل کې د ټولنیزې اړتیـا لـه املـه څـه سـوداګریزه حقونـه رامنځ ته شول، چې لا پـه جنینیـزه حـال کې وو. دا حقونـه  د هغـو دودونـو ټـولګۍ وه، چې لـه عمـل نـه لاس ته راغلې وه او یـو ډول نړېوالـه مسئله وه، چې سوداګرو په خپلو منځو کې منځ ته راوړې وه. خو لـه هغه ځایه چې یاد شـویو حقونـو لا قـانوني بڼـه نـه وه موندلې، عمومن سوداګرو د خپلـو اختلافونـو د حـل لپاره حاکمانو ته رجوع کوله.

هغه محکمو ته، چې پـه دې توګـه جوړېـدلې، پـه انګلستان کـې «خـاورینې محکمـې» ویلـې، ولـې چـې هغه کسان، چې دې محکمو ته یې رجوع کوله، هغه سوداګر وو، چې تازه له لارې نه رارسېدلي وو.

**سینیوران، بورژواګان، ازاد ښـارونه:** سـینیوران پرته له هغه، چې روحـاني وو، ژر د ښـارونو د ودې او پرمختګ په ښـېګڼو پـوه شـول، ولـې چـې پـه هماغـه

پرتله به يې چې دې ښارونو ته په سيندونو او واټونو کې تګ راتګ زياتولو او د پيسو کچه يې پورته وړله، د سينيورانو خزانه هم هومره لا ډکېدله. نو د اريانتيا وړ نه ده، چې که په کليو کې په خپلو ماڼيو کې يې ژوند کاوه، د ښار له اوسېدونکو سره يې لېږې اړيکې لرلې، تر دې چې له پورژواګانو سره اختلاف پيدا کړي.

خو روحاني سينيورانو د ښارونو او د بورژواګانو له ژوندانه سره مخالفت کولو، چې د ځينو جګړو لامل وګرځېدل. د پېښې له مخې، په هغه جنګ کې چې د ۱۱مې پېړۍ په دوهمې نيمايې کې د امپراطورانو او پاپ په منځ کې ونښتو، د لمباردي ښارونو اوسېدونکو موکه وموندله، چې د دې روحاني شاهزويانو پر ضد پاڅون وکړي. په ۱۰۷۷م کال کې د کامبر ښار د هغه اسقف (لوی کشيش) پر ضد قيام و کړ او تر ټولو پخوانی کمون يې منځ ته راوړ.

په دې توګه ښارونو د اوومې پېړۍ په پيل او ځينو د همدې پېړۍ په ترخ کې د ښاري جوړښتونو خاوندان شول، چې دوی د ژوندانه بنې ايجابول.

هغه څه چې بورژوازي يې ځانګړې کوله، دا وه، چې بورژوازي د پاتې خلکو په منځ کې يوه وتلې طبقه جوړوله. نن د ښارونو توپير له کليو سره دادی، چې د ښارونو اوسېدونکي ډېر او اداري يې پېچلې دي، خو بل باندېوالی نلري او نورو عمومي او ځانګړو حقونو خاوندان نه دي.

خو بورژواګان داسې نه وو او د حقونو له پلوه د ټولو هغه کسانو سره، چې د ښار له دېواله نه يې بهر ژوند کاوه، توپير درلوده؛ همدا چې انسان د ښار له دړې او ډنډ نه تېرېده، بلې نړۍ ته ورتللو او په حقيقت کې د بېلو حقونو سيمې کې يې پښه کېښودله. بورژواګان د لويو کورنيو او روحانيانو په شان په عمومي حقونو کې ګډ نه وو.

د ښار زمکې هم ښېګڼې درلودلې او د پناه وړلو ځای شمېرل کېده، که هر چا هلته کډه کړې وای، د دې په شان چې کليسا ته پناه يوسي، په امان کې ؤ. لنډه دا چې پورژوازي له هره پلوه ځانګړې طبقه ګڼل کېدله او بورژواګانو د کليو خلکو ته د زبېښاک په سترګه کتل او په بشپړه کست (حسادت) سره

حاضر نه وو، له خپلو ښېګڼو څخه هغو ته څه شی ورکړي.

دلته دا ټکي هم باید یاد کړو، چې د ۱۲مې پېړۍ نه تر ۱۵مې پېړۍ پورې په ټولې اروپا کې د ښارونو نفوس د ټول نفوس یو پر لسمې برخې نه ډېر نه ؤ.

**د سوداګرۍ اغېزه په فیوډالي جوړښت باندې:**

۱ – کله چې سوداګرۍ رونق وموند، سینیورانو او د هغو چاپېروالو غوښتل، خپل ژوند ته د هغو شیانو په وزله، چې د سوداګرۍ له لارې د دوی لاس ته رسېدل، لوېښت یا لږ تر لږه هوساینه ورکړي. که چېرې په ۱۱مې او ۱۲مې پېړۍ کې د ټولنې د لوړو طبقاتو د یوه وګړي ژوند وڅېړو، وینو، چې د خوړو، کالیو او د کور او نورو شیانو له پلوه یې لګښت خورا پورته تللی دی.

په دې توګه د زمکو د لویو خانانو اړتیاوې زیاتېدې او د جنسونو نرخونه هم پورته تلل، خو د یاد شوو خانانو عاید په هغه اندازه نه ډېرېدو، ولې چې دوی خپل عواید د هغو دودونو پر بنسټ لاس ته راوړل، چې مقدس شمېرل کېدل او هغو ته ډېره

ګرانه وه، چې له دې دودونو تېرى وکړي، نـوى عايـد خلکو نـه واخلـي. لـه دې کبلـه ډېـرې اسـيلې کـورنې (يـانې د زمکولـوى خاونـدان) پـوروړي او يـا ديـوالي شول، د بېلګې په توګـه کبسـه کـوي، چې د ۱۳مې پېړۍ په نيمايي کې، په يوه سيمه کې د خانانو شمېر له ۶۰ کسانو نه ۱ يا ۲ کسانو ته راټيټ شو.

۲ – البته ځينې خانان د دې بحـران پـه وړانـدې ودرېدل، په دې مانـا چې پخـواني دودونـه يـې مـات نکـړل، خــو ويــې کــولای شــول چــې د جنســونو د ګرانېدو څخه تر څه هانده پورې مخنېـوى وکـړي، د بېلګې په توګه پخوا په هـر «کـور» کې ځېنـو مهمې کارګـاوو شــتون لاره او څــو لــس کســه ســرفان يــې بوختول، چې ټوکر او يـا د کـار افـزار جـوړ کـړي او پـه دې حـال کې چې همدغـه لوښـي د ګاونـډي ښـار د کسبيانو لخوا جوړېدل. ځينـې خانـان پـه هڅـه کې شــول، چې دا راز کارګـاوې منـع کـړي او پـه ۱۲مـې پېړۍ کې دا کارګاوې نږدې ټولـو ځـايونو کې مـخ پـه زوال شوې.

۳ – ډېرو لویو خانانو، چې ځینې لږ موندل کېدونکي جنسونه لکه مالګه، شراب او نور چې د دوی په املاکو کې نه موندل کېدل، لېرې پرتې زمکې یې خپلې کړې وې او دا جنسونه یې له هغه ځایه چمتو کول، نور لوی خانان دې ته اړ نه وو، چې دا لېرې پرتې زمکې وساتي او د هغو په پلورلو یې پیل وکړ.

۴ – د سوداګرۍ له نورو اغېزو څخه یوه دا وه، چې له هغه ځایه چې جنسونه ورو ورو له بهر نه پېرودل کېدل، کورنې په هڅه کې شوې، چې د خپلو روپیو عاید ډېر کړي، دې خبرې دوی اړ کول، چې سرواژ له منځه یوسي او یا یې شدت لږ کړي. ولې یو سرف به یې چې ازاد کړ، دوې ګټې یې لرلې: یو دا چې سرف د ځان ازادۍ لپاره پیسې پرې کولې، بله دا چې له ازادېدو وروسته هم له خپلې زمکې څخه نه تېرېدو او د هغې اجاره اخیستونکی به شو. په همدې موکه کې وو، چې سرفانو کولای شول خپل هوډونه، د بېلګې په توګه د بېګار دنده یې د پیسو په بدل له

خپله سره لېرې کوله. ورو ورو په پیسو کېدلای شول هر څه وشي.

۵ – د سوداګرۍ نفوذ بیا دا اغېزه لرله، چې د کرهنې ډول ته د زمکې، اوبو او هوا سره سمون ورکول کېدو. تر هغه دمه چې د شیانو وړل راوړل لږ پلي کېدل او د هېڅ په حکم کې وو، اړتیا پیدا کېده، چې سینیوران په هره توګه چې کېږي، د حبوباتو راز راز ډولونه په خپلو زمکو کې وکري، ولې چې له بله ځایه یې چمتو کولای نشول. خو له دولسمې پېړۍ څخه وروسته، چې سوداګري دود شوه او جنسونه یې له یوې سیمې نه بلې ته وړل راوړل، سینیوران په هڅه کې شول، چې هغه شیان په خپلو زمکو کې وکري، چې له زمکې، اوبو او هوا سره اړوند ولري او په لږ لګښت سره وکرل شي.

۶ – د سوداګرۍ له اغېزو څخه دا هم وو، چې زمکې خوځېدونکې شوې، یانې په لاس پر لاس کېدو یې پیل وکړ – په دې توګه، چې بزګرانو په دې موکه کې په ګاونډي ښار کې یو بازار لرلو او له دې کبله د

پیسو لرلو او ذخیره کولو ذوق په ده کې پیدا شو. په همدې موکه کې هم د ښارونو شتمن بورژواګان په هڅه کې شول، چې زمکې واخلي، ولې چې غوښتل یې هغه ګټې یې، چې د سوداګرۍ نه لاس ته راوړلې، په دې زمکو کې په کار واچوي. په دې توګه ورو ورو ځینې زمکې د لمړنیو خاوندانو له لاسه وتلې او د نویو خاوندانو لاسو کې لوېدلې.

**ترانسپورتی ستونزې:** په منځنیو پېړیو کې د انسان او شیانو په وړو راوړو کې خورا ستونزو شتون لاره. پخوانیو رومیانو د خپلو یرغلونو لپاره په ځانګړې توګه واټونو ته خورا اهمیت ورکولو او هڅه یې کوله، چې هغه ښې وساتي.

خو دا واټونه په فیوډالي دور کې د هغو ګډوډیو له امله، چې پېښې شوې، د مرکزي ځواک د لېر کېدلو له امله او د سوداګریزو اړتیاؤ د کمښت له امله ویجاړې شوې او د بېلګې په توګه په نهمې پېړۍ کې یې د خواخوږۍ وړ وضعه لرله.

په فیوډالي دور کې ښه واټونه له منځه تلې وې. خو د لارساتلو حقونه، چې پخوا د واټونو د ساتلو او

ودانولو لپاره اخیستل کېدل، هماغسې پاتې وو، ان نوي حقونه هم منځ ته راغلي وو او له دغو حقونو څخه هیڅ یو یې اصلي موخې ته نه رسېدلو. د لارساتلو حقونه په حقیقت کې یو ډول مالیې وې، چې د سینیورانو له خوا اخیستل کېدلې او حمل او نقل یې په کلکه توګه فلجول. د لارساتلو له دې حقونو څخه یوې پیسې هم په لار جوړلو لګښت نه موندلو او یادشوي حقونه یو بار ؤ، چې په سوداګرۍ باندې تحمیلېدو او تر پایه پورې یې هغه د سینیورانو د زورچلولو او ناوړې ګټې پورته کولو له مادو څخه یوه شمېرله.

له دې کبله لمړنی حق، چې ازداد شویو ښارونو غوښتلو، دا ؤ، چې د لارساتلو حقونه دې د بورژواګانو په ګټه له منځه لاړ شي. تر دولسمې پېړۍ وروسته د ښارونو سوداګران بریالي شول، چې د لارساتلو له پرېکولو څخه په پردیو هېوادونو کې هم، چې ترې تېرېدل، تر یوه هانده پورې وبخښل شي، برسېره پر دې د سوداګرو د لارې په سر د لارساتلو د حقونو د اخیستلو لپاره ډېرو بارونو شتون

لاره. د بېلګې په توګه د څوارلسمې پېړۍ په پای کې د الپ سيند په سر ۳۵ او د دانوب سيند (يوازې په بنکته اطريش کې) په سر ۷۷ ځايونو د لارساتلو د حقونو اخيستلو لپاره شتون لاره.

د واټونو وضعې د جنسونو د ځنډېدو سره مرسته کوله. په ژمي کې نږدې ناشونې وه له هغو واټونو څخه، چې له اوبو او خټو به ډکېدلې، تېر شي. د واټونو ساتل او ودانول د هغه چا په غاړه وو، چې د هغو په ساتلو کې يې ګټه لرله او عمومي ځواکونو نږدې هېڅ راز لاسوهنه نه کوله. له دې کبله د واټونو د وضعې ښه کېدل يوازې د مساپرو او هغو کسانو د ابتکارونو له امله وو، چې د مقدسو ځايونو زيارت ته تلل.

څرګنده ده، چې ترانسپورتي وسايل بايد له واټونو سره سمون ولري. په پايله کې يې عمومن د دوه ټېره ګاډيو څخه کار اخيستلو، خو د تجارت خورا لويه برخه په اس باندې سرته رسېدله او په ندرت سره يې درندې او څلور ټېره ګاډې هم په ډېرينو واټونو کې کارولې.

د واټونو دا وضعه لامل شوه، چې د سیندونو په فکر کې ولوېدل او له هغو څخه یې، که څه هم چې په ژمي کې به یخ وهلې او په اوړي کې به بنکته کېناستلې، په ډېرو سیمو کې ګټه پورته کوله.

سوداګري د دې ټولو لارساتلو د حقونو له امله، چې د هېوادونو په منځ کې ورپورې تړل کېدل، د مخنیویو سره مخ وه. خو د هغه په بدل کې په سیاسي سرحدونو کې د سوداګرۍ لپاره هېڅ ممانعت شتون نه لاره او یوازې په ۱۴مې پېړۍ کې وو، چې «د داخلي سوداګرۍ د ساتنې» چلند رامنځ ته شو. له دې تاریخ نه مخکې هېڅکله لېدل شوي نه وو، چې د داخلي سوداګرۍ لپاره کوم پورته والی قایل شي او له هغې نه د بهرنې سیالۍ لپاره ملاتړ وکړي.

د سینورانو خپل منځي اړیکو په اقتصادي وضعې باندې ډېره اغېزه لرله، ولې همدا چې دوه سینیوره به په خپلو کې په جګړه شول، د یو بل سوداګر یې بندي او د دوی مالونه به یې ضبطول او د هغو بېړۍ یې اخیستلې، په بله توګه د غلیم له

سوداګرۍ څخه مخنیوی له هغو وسایلو څخه ؤ، چې د هغه اړباسلو لپاره، چې نښته خوښې کړي، کارېدلو.

خو همدا چې سوله به ببرته ټینګه شوه، له دې ټګلارې څخه به کومه نښه هم نه پاتې کېدله او نور د هغو وسایلو څخه د ګټې پورته کولو فکر، چې د مخامخ لوري د ماتولو لپاره په کار شي، د دې فکر، چې د مخامخ لوري بازارونه له هغه نه ونیسي او د هغه صنایع ضبط کړي، په هېڅ ځای کې نه کتل کېده.

*****

## ۲۵

## د ۱۳مې پېړۍ تر پایه پورې فیودالي دور ته بشپړه کتنه

**پانګه (کاپیټال) له سوداګرۍ څخه رامنځ ته شوه:** هېڅ شک نشته، چې د پانګوالۍ نطفه له هماغه ۱۲مې پېړۍ څخه وټرلی شوه او سوداګري یانې هغه سوداګري، چې له اوږدې مودې څخه پلې کېدله، شتمني یې تولید کړه. له **ګودریک دوفنګال** په نامه یوه کس نه کېسه کوي، چې د همدې دلیل دی، چې سوداګري او پانګه سره یوځای پیدا شول او تر څنګه یې دا کېسه د ټولو دورونو د پانګه والو روحیه ځانګړې کوي:

ګودریک دوفنګال د ۱۱مې پېړۍ په پای کې په یوې کلیوالې بې وزلې کورنۍ کې نړې ته راغی او له هغه ځایه چې اړ شو خپله پلرینه زمکه خوشې کړي، ناچاره شو، خپل ټول فکر د مزد لپاره په کار واچوي

او د ډېرو بېوزلو په توګه د سیند په غاړه ګرځېدلو او د هغه شیانو له ټولولو څخه یې، چې سیند څنډو ته راوړل، ژوند کاوه. په هغه موکه کې هم ډېر پېښېدل، چې ببړې ډوبې شي، توپان هم د هغو پاتې شیان څنډو ته راوړل. د پېښې له مخې یوه ورځ هغه څه چې له سینده د ګودریک دوفنګال لاس ته ورغلل، هغه ته یې موکه ورکړه، چې یوه پنډه وتړي او د ګرځندویو په شان په ګرځېدو روان شي او له دې لارې لړشانې روپۍ ترلاسه کړي. په همدې وخت کې یوه موکه لاس ته ورغله، چې د سوداګرو له یوې ډلې سره همسفره شي او په دې سفر کې یې وکولای شول ډېره ګټه لاس ته راوړي او د تجارانو سره په کمپنیو کې شرکت وکړي. یادشوی شرکت ښه بریالی شو او ګودریک او همچارو ته یې لویه پانګه ورکړه.

د ګودریک دا برخه لیک په حقیقت کې د نورو ډېرو کسانو برخه لیک دی. په هغه دور کې چې سیمه ایزې قحطۍ ډېرې پېښېدلې، په اسانۍ سره شونې وه، چې څوک ډېره کمه اندازه غنم، په هغه ځای کې چې پرېمانه وو، واخلي، د قحطۍ سیمې ته

يې يوسي او په ډېره لويه بيه يې وپلوري، ډېره ګټه ترلاسه کړي او دا عمل تکرار کړي. له دې کبله احتکار چې د دې ډول کارونو سرچينه ده، د لمړنيو سوداګريزو شتمنيو په منځ ته راوړلو کې دخيل ؤ.

په دې توګه د پانګه وال کس روحيه په خورا ښه توګه پيژندلې شو.

د يو پانګه وال کس ځانګړي صفتونه دادي، چې د حساب له مخې کار کوي او يوازينې موخه يې دا ده، چې ګټې سر په سر ډېرې کړي.

**سوداګريزه ګټه د زمکو پېرودونکي ته پکار ورځي:** هغه سوداګرو، چې په دې توګه ډېرې ګټې لاس ته راوړلې، له دې ګټې څخه د ګټې پورته کولو ځای په توګه يې زمکې ته تر ټولو څخه د ښې سيمې په توګه کتل. له دې کبله يې د ۱۲مې او ۱۳مې پېړۍ په ترخ کې د ښارونو عمده برخه زمکه واخيستله او له هغه ځايه چې د ښارونو نفوس ډېرېدلو او د دوی زمکو پر سر به کورونه جوړېدل، له دې لارې يې هومره ګټې يوړې، چې له دوی څخه ډېرو د ۱۳مې پېړۍ له نيمايي نه له سوداګرۍ څخه

تېر شول او يوازې د خپلو زمکو له عايد څخه يې ژوند تېرولو. په دې توګه وينو، چې که څه هم زمکه د خوځنده پانګې سرچينه ده، خو دا خوځنده پانګه وه، چې بورژواګان يې د زمکو خاوندان وګرځول.

**په دې دور کې طبيعي ابرې ډېر سوداګريزه کالي وې:**

که هغه کالي، چې په دې دور کې يې وربانډې سوداګري کوله، په پام کې ونيسو، وينو، چې طبيعي ابرې لکه درمل، شراب، غنم، مالګه، کبان او وړی له صنعتي ابرو څخه خورا ډېرې دي.

نړدې د صنعت ټول ډولونه لکه بوټان، کالي او افزار د ښارونو په چاپېريال کې پاتې وو، په دې مانا چې د دې لوښو جوړوونکو هغه يې انحصار کړي وو او يوازې په سيمه ايزو بازارونو کې يې پلورل. له دې کبله هغه کالي، چې په سوداګرۍ کې دود وو، غالبن طبيعي ابرې وې – البته په همدې دور کې د ماهوتو (کشميرې) سوداګري د لويو سوداګريو څخه وه، خو د دې ډول صنعتي ابرو سوداګري بايد استثنايي وشمېرو.

**د پښن توب او معدنونو صنعت:** په ځينو ځايونو کې د پښن توب سوداګرۍ پراختيا وموندله، په سوداګرۍ کې شامله شوه، خو په بشپړه توګه بايد ووايو، چې د دې ډول صنعت پراختيا په منځنيو پېړيو کې لږه او ناقصه وه او همدا موضوع ده، چې د منځنيو پېړيو اقتصاد د نوي دور له اقتصاد څخه جلا کوي. د ډبرينو سکرو وېستل هم په همدې درجې ناقصه وو.

**د کسبونو انحصار - کارپورېشن:** له يوولسمې پېړۍ څخه وروسته هر کسب يوه ځانګړې ډله جوړوله، چې کارپورېشن نومېده. هرې ډلې حق لاره، چې خپل کسب هغو کسانو ته ځانګړی کړي، چې د هغې غړېتوب يې درلوده. دې ډلو هسې حقونه لرل، چې د صنعت له ازادۍ سره يې بشپړه تضاد لرلو او د هغو بنسټ له انحصار څخه پرته دا ؤ، چې له خپل صنعت څخه ملاتړ وکړي او هغه له هر راز داخلي او بهرنۍ سيالۍ څخه وژغوري.

دې کارپورېشنونو د ښار بازار د بهرنيو ابرو پر مخ تړلو او په ځنګ کې يې ځارنه کوله، چې د

کارپوربشن هېڅ غړی د نورو غړو پر ضد شتمن نشي. له دې کبله کارپوربشنونو د خپلو غړو لپاره پرېکړې لرلې، د بېلګې په توګه د بيې او لاسمزد کچه، د کارګنېتې، د هغو افزارونو، او کارګرانو شمېر، چې هره کارګاه يې بايد ولري، ټاکلې. هر ډول رکلام (تبليغات يې منعه کول)، تر څو په دې توګه د کارپوربشن هېڅ غړی له بل څخه مخکې نه شي او د امکان تر هانده برابرتيا په دوی کې حاکمه وي.

د هر کارپوربشن حقونه او باندېوالتياوې، چې هغه يې له سيالۍ څخه ژغورل، لامل شول، چې د ابتکار ځواک له منځه لاړ شي، ولې چې هيچ چا حق نلرلو، خپل جنس له نورو ژر يا ارزانه چمتو کړي او په دې توګه هغو ته ضرر ورسوي. د دې کارپوربشنونو اصلي موخه دا وه، چې صنعت په هماغې وضعې کې چې وه، وساتي، تر څو د وګړو وضعه هم ثابته پاتې شي.

د کارپوربشن مقرراتو يوه بله بڼه هم لرله او هغه د مصرفوونکي ژغورل وو، په دې مانا چې د ابرو ډول

د کارپورېشن له خوا بیا کتل کېده، تر څو له ښکلا و نه لوېږي، د دوکو او جعل لپاره یې ګرانې سزاګانې ټاکلې وې.

دې کارپورېشنونو، چې کسبیانو د ۱۱مې پېړۍ په پای کې پیل کړې، لمړی هېڅ قانوني بڼه نلرله او هغه کسبیان یې، چې د کارپورېشن غړي نه وو، یوازې د بایکوټ کولو (د هغو د مصنوعاتو د منع کولو) له لارې کولای شول، کارپورېشن کې غړیتوب ته اړ کړي، خو ورو ورو کارپورېشنونو ځواک موند او په پای کې قانون اړ شو، د هغو واکونه په رسمیت وپېژني.

**د کارګرانو او پاترنونو وضعیت:** د هغه کارګرانو ژوند، چې په صنعتي ښارونو کې په کارګاوو کې بوخت وو (دوی نباید د کسبیانو سره اشتباه و نه نیسو)، پرله پسې د بحران او وزګارتیا سره مخ ؤ. همدا به چې توکي د جګړې له امله او د هغو د واردولو له امله بند شول، کارګاوې به له کاره ودرېدې او د وزګارو کارګرانو ډلې به په کوڅو کې

خوشې شوې او يا په کليو کې به په سوالګرۍ لګيا شوې.

په هغو دورونو کې به چې دا بحرانونه نه وو، د کارګاوو د خاوندانو او يا اجاره لرونکو وضعيت به د منني وړ ؤ، خو کارګرانو په خپله غالبن په تنګو او ناولو کوڅو کې په هغو کوټو کې، چې په اونيزه توګه به يې کرا کولې، ژوند کاوه او پرته له خپلو کاليو يې هېڅ مال نلرلو. دا کارګران به له يوه ښار نه بل ته تلل او اربابانو (پاترنانو) سره به اجير کېدل. د دوه نۍ (دوشنبه) سهار به چې شو، دا ببوزلي به تر کليسا چاپېره عمومي ميدانونو کې کوم ارباب ته سترګې په لار وو، چې دوی د اتو ورځو په موده اجير کړي.

د کار ورځ د سهار له سره پيل کېده او پای يې د ورځې پای ؤ. د پيسو پرې کول به د خالي (شنبه) په ورځ پلي کېدل او سره د هغه چې د ښار مقرراتو به امر کولو، چې پيسې بايد په سپينو زرو پرې شي، اربابانو د پرې کولو په موکه خورا ناوړه ګټه پورته کوله.

په دې توګه د لويو صنايعو کارګرانو د نورو کسبيانو په منځ کې هغه طبقه تشکيلوله، چې تر يوه هانده پورې د نن ورځې پرولتاريا ته ورته وه. دا کارګران د «شنو نوکانو»، د کاليو او د تريخوالي له امله، چې په چلند او خبرو کې يې درلوده، پېژندل کېدل؛ هېڅ چا له دې نه، چې له دې بېوزلو سره سم چلند ونکړي، حزر نه کولو، ولې چې پوهېدل، چې که چېرې د دوی څخه يو وشړي، د هغه ځای به د اوږدې مودې لپاره تش پاتې نه شي. له دې کبله د اريانتيا ځای نه دی، که وينو، چې کارګرانو د هماغه ديارلسمې پېړۍ له منځ نه د اعتصابونو په جوړولو لاس پورې کړ. تر ټولو پخوانی اعتصاب، چې موږ ته څرګند دی، په ۱۲۴۶م کال کې د دويې په ښار کې (د فرانسې له شمال لويديزو ښارونو څخه) پېښ شو. په کال ۱۲۷۴م کې د ګان د ښار (د بلژيک په شمال لويديز کې پروت دی) د ټوکراوبدلو کارګران له اعتصاب څخه هم پورته لاړل، په ډله ايزه توګه له ښار نه ووتل او د بلژيک د پايتخت په لور روان

شول، خو د ښارونو خلک د دوی له عمل نه خبر شول، لار یې د دوی پر مخ وتړله. له دې کبله په هالنډ او بلژیک کې له ۱۲۴۲م څخه ځیني تړونونه د ځینو ښارونو تر منځ وتړل شول، پر دې بنسټ چې شکمن او توطیه ګر کارګران یو بل ته ورستانه کړي او هرکله به چې کارګران د امر نه د سرغړونو په هڅه کې شول، هغوی یې تبعیدول او یا یې وژل.

هغو کارګرانو چې د دې دور په کارګاوو کې کار کولو، زموږ د عصر له مزدورانو سره یې څو بنسټیز توپیرونه لرل:

۱ – دغه کارګران د دې پر ځای چې په لویو فابریکو کې په خپلو کې څنګ تر څنګه کار وکړي، په وړو کارګاوو کې خواره وو.

۲ – پاترن (ارباب) چې د کار د افزارو څښتن او یا – هسې چې غالبن پېښېدل – د هغو اجاره لرونکی ؤ، اصولن په خپله هم کارګر ؤ او د یوه کس پانګه وال سوداګر په حساب یې کار کولو او حال دا چې د نن ورځې فابریکه لروونکي پخپله په هېڅ وجه کارګر نه دي او په کار کې برخه نه اخلي.

له هغه ځایه چې د ښار مشران د بورژواګانو له منځه ټاکل کېدل، په حقیقت کې داسې ډاډه مرجع، چې د کارګرانو حقونه وژغوري، شتون نه لاره. د هغو سندونو پر بنسټ، چې په لاس کې دي، په بشپړه توګه څرګندوي، چې د لویو صنایعو د کارګرانو زبېښناک کومې درجې ته رسېدلو، کاروركونكو په پاترنانو او پاترنانو په خپل وار سره په بېوزلو کارګرانو فشار راوړلو.

*****

## ۲۶

## ۱۴مې و ۱۵مې پېړۍ ته بشپړه کتنه

**د بزګرانو وضعیت:** د ۱۴مې پېړۍ په پیل کې د اروپا اقتصادي وضعه داسې وه، چې نه د ښارونو خلک او نه د کلیو خلک هېڅ یو هم خوښ نه وو.

ومو ویل، چې له ۱۱مې پېړۍ وروسته د سرفانو ازادول پیل شول، خو د سرواژ دور ډېرې پای پاتې (باقی مانده) برخې لا ټینګې وې، په ډېرو هېوادونو کې لا درانه بیګارونه په سرفانو باندې تحمیلېدل، په دې حال کې چې د سرواژ ښېګڼې له دوی څخه اخیستل شوې وې. په دې مانا چې سینیورانو په ۱۲مې او ۱۳مې پېړۍ کې – هماغه شان مو چې څرګنده کړه – د خپلو زمکو یوه برخه ازاده کړه او په اجاره یې ورکوله او له دې کبله یې غالبن خپلې پخوانې بنې له لاسه ورکړې وې او د ببلګې په توګه ځانونه یې د خپلو زمکو اوسېدونکو څخه ملاتړ ته موظف نه ګڼلو. سینیوران په هغه دور کې د هغه

زمکو لرونکو په حکم کې وو، چې د ماليو او ارزي حقونو د اخيستلو له لارې يې ژوند کاوه.

پخوا سرفان له اربابی زمکو نه تښتول او نورو سيمو ته تلل او د بل ارباب په شنډو زمکو کې په کرهڼه بوختېدل او سينيوران د دې لپاره، چې د هغو له تېښتې نه مخنيوی وکړي، ناهوبله دوی ته يې ازادي ورکوله او هغوی يې اجاره اخيستلو ته اړباسل. خو په دې دور کې له هغه ځايه چې د سينيورانو ډېرې زمکې ودانې شوې وې، سرفان که له خپلې زمکې څخه تښتول، عمومن کوم ارباب يې نه موندلو، چې هغو ته زمکه ورکړي. له دې کبله په دې دور کې کوم مهم لامل شتون نه لاره، چې سينيوران سرفانو ته ازادي ورکړي. سره د دې له دې کبله چې سينيورانو د تجارت د پيدا کېدو له امله پيسو ته اړتيا پيدا کړې وه، داسې پېښېدل، چې خپل سرفان او کله د يوه کلي ټول اوسېدونکي يې د لږې وجې په بدل کې ازادول، خو له هغه ځايه – هماغه شان چې وموويل – د سينيورانو د شنډو زمکو پراخوالي لږ شوی ؤ. سرفان هيله مند نه وو،

چې که د خپل ارباب لـه زمکـو څخـه ووځـي، تـر دې
ښه وضعه ومومي.
له بله پلوه له هغه ځایه چې سرواږ د بزګرو لپـاره
یو عمومي وضعیت نـه ؤ او ګـڼ شـمېر ازاد شـوي وو،
هغه شمېر چې په دې وضعیت کې پـاتې وو، ځانونـه
یې له یوه حق څخه بې برخې ګڼل او ناراضه کېدل.
ازاد بزګر هم له سینیورانو څخه، چې هغـوی تـه
یې زور ویلو، ناراضـه وو او د سـینیورانو خپـل منځـي
جګړې په دې ناخوښیو ورزیاتېدلې.
دا وضـعه پـه فرانسـې کـې رامـنځ تـه شـوې وه او
نـورو هېوادونـو هـم هغـه تـه ورتـه وضـعیت لرلـو. د
پېښې له مخې له ۱۳۱۵کال نه تر ۱۳۱۷م کاله پـورې
په اروپا کې لویه قحطي پېښه شوه، چې ورانـونې یـې
لـه پخوانیـو قحطیـو خـورا ډېـرې وې او ۳۰ کالـه
وروسته له دې تاریخه یو طاعون راغی، چې تـر ټولـو
خطرناکه طاعون ؤ، چې تاریخ یې په یاد لري، هسې
چې د اروپا یو پر دریمه نفوس یې له منځه یووړ.
دا ټول لاملونـه د پـاخونونو لامـل شـول، چې د
هغو ببلګه (په ۱۳۵۸م کې د ژاکري خوځښت) مـو د

کتاب په ۱۳م څپرکي کې څرګند کړ. دا پاڅونونه موخې ته ونه رسېدل، بزګرو که څه هم د ټولنې ډېرکې جوړولو، خو د هغو ټولنیز وضعیت داسې نه ؤ، چې د ګډو عملیاتو لپاره یو شي او له فکري پلوه هم نه پوهېدل، چې که اوسنۍ ټولنه ورانه کړي، د سبا ټولنه څرنګه ودانه کړي. د هغه بزګر، چې زمکه یې کرله او هغه خان تر منځ، چې د ده د لاسرنځه څخه یې ژوند کولو، ډېر توپیر او تضاد شتون لرلو، خو د هغه توپیر په کچه، چې نن دښارونو د کارګر او پانګه وال تر منځ شتون لري، نه محسوسېده، ولې چې د بزګر وضعیت هسې ؤ، چې لمړی هغه په زمکې پورې تړلی ؤ او حال دا چې کارګر په فابریکې پورې هېڅ راز تړون نلري او دوهم دا چې د دوی خپلواکې تر یوه هانده پورې د کارګرانو په پرتله ډېره ساتل شوې وه.

**د بورژواګانو او کارګرانو وضعه:** له هغه ځایه چې د ښارونو ژوند په صنعت او سوداګرۍ باندې تکیه لرله، څرګنده ده، چې بورژواګانو (سوداګرو او د کارګاؤ خاوندانو) په ښارونو کې ډېر اهمیت لرلو او

مهم پوړونه د دوی په لاس کې وو او هغوی وو، چې دولت یې جوړاوه. دې دولت په بشپړه توګه طبقاتی بڼه لرله، له هغه ځایه چې لـه عمـومي ګټـو سـره یې غبرګون درلـوده، تـر څـه مـودې پـورې یـې لیاقـت او کفایت له ځان څخـه ښرګنـد کـړ او ښـاري اداري یـې منځ ته راوړې، مالیه یې رامنځ ته کـړه. بازارونـه یـې سم کړل، ښـوونځي یـې پرانیسـتل. خـو ښرګنـده ده، چېرته چې د صنایعو د اقتصادیاتو اده د هغو کسـانو په لاس کې وي، چې د هغو له ګټو څخه ژوند کـوي، د هغو هڅه به په دې کې وي، چې ترڅو کولای شي د کارګرانو برخه کمه کړي.

موږ پخوا ښرګنـده کـړه، چـې کـارګرانو څنګـه پـه تدریج سره د فابریکو له خاوندانو سره مخالفت پیـل کړ. اوس یو ټکې پر تېرو خبرو ورزیاتوو، چې ورو ورو ګڼ شمېر بورژواګان هـم دې کـارګرانو سـره یوځـای شول، ولې چې اقتصادي ځواک یوازې د لږو شـمېرو په لاس کې لوېدلی ؤ، چې نورو ته یـې د ګـډون حـق نه ورکولو. په دې توګه دوه بهیره د اداره کوونکـو پـر ضد رامنځ شول.

په دې پاڅونو باندې، چې د کارپوریشنونو له خوا د پاترنانو پرضد پلي کېدل او موږ له هغو څخه ځینې د کتاب په تېرو څپرکو کې څرګند کړل، غالبن د «دیموکراتیک انقلاب» نوم کېږدي. که دېموکراسي، په هغه مانا سره چې نن یې لري، په نظر کې ونیسو، دا نوم اېښودل چنداني سم نه دي، ولې چې ناراضیان او یاغیان د ملي حکومت د رامنځ ته کولو په هڅه کې نه وو، بلکه یوازې د ولسوالیو په حدودو کې یې فکر کاوه او هر کارپورېشن یوازې د خپل کسب په فکر کې ؤ او له دې کبله هرکله څو کارپورېشنونه د مبارزې په موکه له یوبل سره یو کېدل، مازې همدا به چې هله ګوله وېده شوه، هغه وخت به په خپلو کې په نښته بوخت شول.

له بله پلوه نباید هېر کړو، چې همدا انقلابیان، چې په ځانونو یې دېموکرات نوم ایښې ؤ، د هغو ډلو غړي وو، چې د ښار ټولو خلکو په پرتله د ډېرو باندېوالتیاوو خاوندان وو او د بېلګې په توګه د صنعت او سوداګرۍ انحصار یې په لاس کې لرلو.

**دا دېموکراسي، چې دا کسان يې پلوي وو، په حقيقت کې د باندېوالتياوو خاوندانو لپاره د دېموکراسۍ څخه عبارت وه.**

*****

**د کارپورېشن په بنسټ کې تزلزل**

**دکارګرانو او پانګه والو نښتو ته چمتو کېدل:**

ومو ويل، چې د ښارونو چارې لويو بورژواګانو اداره کولې او له هغه ځايه چې دغو مهمې دندې ځانونو ته ځانګړې کړې وې او ناوړه ګټه يې پورته کوله، د ۱۳مې پېړۍ له نيمايې راهيسې د وړو سوداګرو او کارګرانو له خوا ځينې خوځښتونه د لويو بورژواګانو پر ضد راپورته شول او له هغه ځايه چې د نفوس ډېرکی په کارپورېشنونو کې ؤ، ناچاره شول، چې کارپورېشنونو ته د ښار د چارو په اداري کې برخه ورکړي او د هغو استاذي ومني.

له بله پلوه دهغو کارګرانو وضعې، چې په لويو صنايعو کې يې کار کولو، د بازار د سيمه ايزو کسبيانو سره خورا توپير درلوده. دا کارګران نور د خپلو اربابانو سره په يوه کربښه کې نه وو او خپله اقتصادي خپلواکي يې له لاسه ورکړې وه. له دې

کبله په هغه کې وو، چې له اقتصادي بدې وضعې څخه راووځي او د کار د شرایطو او د لاسمزد بیې ټاکل د دوی خپل لاس ته ولوېږي او ناروښانه افکار د برابرتیا په هکله له هغوی څخه د ډېرو په سر کې لوېدلي وو. همدغه وو، چې د ۱۳مې پېړۍ په پای کې یې په ټولو ښارونو کې د پاڅون بیراغ اوچت کړ، خو په چټکتیا سره د بورژوازۍ نورو وګړو، یانې سوداګرو او کسبیانو د دوی پر ضد لاس په پاڅون پورې کړ او د هغوی خوځښتونه یې کرار کړل.

د دې ورځ مزده کارګرانو او دې پرولترانو په وړاندې د لویې سوداګرۍ پانګه وال، دلالان او د جنسونو صادرونکي د سیمه ایزو صنایعو له خاوندانو سره یو شول او د دې لپاره چې ټول وګړي راضي وساتي، په هغه کې شول، چې هرې مهمې ډلې ته، یانې د وړو کارګاوو بورژواګانو او د ټوکر اوبدلو فابریکو کارګرانو ته د ښار په چارو کې د مداخلې حق ورکړي. خو نوموړي کارګران پوهېدل، چې دا عمل له یوه نیرنګ څخه پرته ډېرڅه نه دي، ولې چې په دې توګه به دوی د ښار نورو غړو په پرتله لږکي وي

او د دې لپاره چې خپل حق واخلي، زورته لاس اچلو څخه پرته بله لار نلري. له دې کبله يې د ټولې ۱۴مې پېړۍ په موده کې لاس په خوځښتونو پورې کړ او حکومت يې په لاس کې ونيوه، خو عمومن د دوی غليمانو ښارونه کلابند کول او د دوی لار يې له بهر سره تړله او کارګران يې تسليمېدوته اړ کول او په پای کې خوځښتونو په عام وژنې سره پای مونده او کارګران اړ شول له خپلو غليمانو سره بېرته جوړښت وکړي.

د ۱۴مې پېړۍ په پای کې په کوچنيو کارپورېشنونو کې هم پرولترو شتون وموند، ولې چې هغو هم کولای نشول، چې د خپلو غړو اقتصادي خپلواکي خوندي وساتي. تر هغه وخته پورې چې کسبيانو هيله لرله، چې په اسانۍ سره د ښوونکي درجې ته ورسيږي، له خپلو ښوونکو سره يې په سوله او اسيلتيا کې ژوند کولو، خو د کسبونو پراختيا هغه هاند ته رسېدلې وه، چې د مصرفوونکو شمېر اجازه نه ورکوله، چې نوې کارګاوې منځ ته راوړي او د توليد کچه پورته يوسي، نو د ښوونکي پوړ ته

رسېدل ورځ په ورځ لا ګران شول او راز راز مقررات رامنځ ته شول، تر څو د ښوونکي پوړ د ښوونکو په کورنيو کې پاتې شي، د زده کړې موده يې اوږده کړه، د هغه پيسو کچه يې، چې د ښوونکي مقام ته رسېدو لپاره بايد پرې شي، پورته يووړه. د يوه شاهکار ښودل يې، چې د کسبي د لياقت بېلګه واوسي، د ښوونکي پوړ ته رسېدلو لپاره لازمي وګڼله. لنډه دا چې د کسبيانو کارپورېشنونه د يو شمېر کبرجنو ښوونکو درلودونکي شول، چې غوښتل يې چې کارپورېشن يوازې خپلو زامنو او يا زومانو ته وسپاري.

له دې کبله د هماغه ۱۴مې پېړۍ له نيمايې نه زده کوونکو او کارګرانو، چې د خپل وضعيت د ښه کېدو لپاره کومه هيله نلرله، په اعتصابونو لاس پورې کړ او غوښتنه يې وکړه، چې لاسمزدونه پورته شي او تر څنګه يې دوی هم وکولای شي د ښوونکو په توګه د کارګاوو په ادارې کې ګډون ولري.

په دې دورکې کارګر، چې پخوا د خپل ښوونکي مرستیال ؤ او د هغه په ژوندانه کې یې ګډون لرلو او غالبن له هغه سر یې خپلوي کوله او په کورنۍ کې یې ورګډېده او د هغه ځای ناستی کېدو، ورو ورو په ورځ مزده کارګر باندې بدل شو او په دې توګه په وړو کارګاوو کې هم کار او پانګه د یوبل مخې ته ودرېدل. هغه کورنۍ وضعه چې په کارګاوو کې حاکمه وه، له منځه ولاړه او د کارګر او پانګه وال نښتې د هغه پر ځای کېناستې.

له هغه ځایه چې کارګران ټول د ګډو ګټو خاوندان وو او یو ډول غوښتنې یې لرلې، یو بل سره د مرستې او د خپلو ګټو څخه دفاع لپاره یې ځینې ټولنې جوړې کړې، چې لمنه یې تر ډېرو ښارونو پورې غزېدله. د دې سازمانونو بنسټیزه موخه دا وه، چې خپلو غړو له کار پیدا کړي او هغوی د اربابانو له زبېښاک څخه وژغوري.

اربابان هم د دې سازمانونو په وړاندې په خپلو کې نږدې شول او په خپلو کې یې د یووالي تړون وکړ.

په دې توګه په ښارونو کې اقتصادي او ټولنيز تضاد ثرګند شو. خو دا تضاد که څومره هم ځواکمن ؤ، کولای يې نشول چې د دې ځواکمن تشکيل بنسټ دړې وړې کړي، په ځانګړې توګه، چې د فکر او اړتياوو او ګټو له کبله د کارګرانو او کسبيانو يوې خوا ته په خپلو کې او له بزګرو سره بلې خوا ته توپير لرلو. هغو کولای نشول، بزګر هغسې چې لازمه وه، له ځان سره هملاسي کړي او حال داچې لويې کورنۍ، اسيلې کورنۍ او د زمکو لوی خاوندان په چټکتيا سره د سوداګرو او شتمنو او د صنايعو اربابانو مرستې ته راغلل. په پايله کې يې د پاڅون ځپې، چې له هر څنډې نه راپورته شوې وې، د پيسو او زور دغه بند په وړاندې ماتېدلې.

**د ښارونو داخلي صنايعو نه ملاتړ:** البته راز راز صنعتي ډلې، چې په يو ښار کې وې، په خپلو کې يې د ګټو اختلاف درلودلو، خو د هغو ټولو ګټو غوښتنه کوله، چې ځانو نه د بهرنې سيالۍ څخه وژغوري. له دې کبله ټول سره يو وو، چې په هره وزله چې لاس

ته راتلی شي، انحصار څواکمن کړي. د صادراتي صنايعو کارګران (لوی صنايع، چې د هغوابره له يوه هېواد څخه بل هېواد ته صادرېده، لکه ټوکراوبدل او داسې نور) او د سيمه ايزو بازارونو کسبيان له دې انحصارونو سره موافق وو، ولې چې د صادراتي صنايعو کارګران په دې باور وو، چې د دوی مزد به د صنايعو له امله پورته لاړ شي. او د سيمه ايزو بازارونو کسبيان هيله مند وو، چې د دې سيستم له کبله به د دوی د کاليو بيې پورته ولاړې شي او يا لږ تر لږه ثابته پاتې شي. له دې کبله صنايعو ځانګړې بڼه ومونده او هر کسب يوې ځانګړې ډلې ته ځانګړی شو.

د هغو په نظر ازادي له هغو باندېوالتياوو څخه عبارت وه، چې د دوی ځای ټينګ کړي. د هغو په نظر هېڅ کوم حق شتون نه لاره، مګر هغه حق، چې لاس ته يې راوړی ؤ.

د دې ځانګړتيا او انحصار ببلګې په دې کې وينو، چې د بورژوازۍ پوړ ته رسېدلو لپاره ګرانې مقررات پيدا شوي وو او هر بنار هغه باندېوالتياوې،

چې خپلو بورژواګانو ته ورکړې وې، هغو ته منحصرې ساتلې. له دې کبله د ښار اوسېدونکو ته د باندېوالتیاوو لاس ته راوړل ورځ په ورځ لا ګرانېدل.

د همدغو انحصارونو له کبله وو، چې ورو ورو یې هڅه وکړه، د ښارونو خواوې له صنایعو څخه تشې کړي او په تدریج سره یې په بېلابېلو پلمو منع کړله، چې ځوک دې د ښار نه بهر کومه هټۍ او یا کارګاه خلاصه کړي او یوازې د بازار په ورځو هغه جنسونه، چې د ښار په منځ کې چمتو شوي نه دي، په هغه ځای کې وپلوري.

دا ډول انحصارونه، په هغه توګه چې صنعت یې فلجولو، لامل شول، چې سوداګري هم د مزاحمت سره مخ شي او له هغه ځایه چې کسبیانو د هغه باور لـه املـه، چې د انحصار ځواکمنولو او د کسبونو ځانګړتیا ته یې لرلو، خپلې ابرې به یې د بازار په ورځو هم پېرودلو او پلورلو ته نه اېښودلې. بازارونه هم په څوارلسمې پېړۍ کې مخ په ډوبېدو شول. له بله پلوه ځینې مقررات پیدا شول، چې سوداګران به

چې کله کوم ښار ته ورسېدل، باید خپل بازارونه یې خلاص کړي وای، مخکې له دې چې لېرې ځای ته ولاړ شي، خپل جنسونه د هماغه ښار په بورژوازۍ وپلوري. البته دا مقررات د سوداګرۍ له روح سره بشپړ مخالف وو او زیات بندونه یې سوداګرۍ ته په لاس او پښو ورتړل.

خو برسېره پر دې ښارونو کولای نشول ځانونه سوداګرۍ ته نا اړ وبولي او هر څه شتمن کېدل، د دوی اړتیا سوداګرۍ ته ډېرېدله او دوی یوازې کولای شول سوداګري تر هغه هانده پورې، چې د ښار د دېوالونو په منځ کې وه، د خپلو مقرراتو لاندې راولي. له دې کبله د پانګې لاسبری د هغه ښارونو په منځ کې، چې د سوداګرۍ موخه ګرځېدل، لکه د سمندر څپې، چې د وړو جزیرو په منځ کې خپرېږي، ځای پر ځای کېده.

**د لویو سوداګریزو شرکتونو منځ ته راتلل او بانکونه:**

د ۱۴مې او ۱۵مې پېړۍ د پام وړ پېښو نه یوه د لویو شرکتونو او د هغو د استاذو چټکه وده ده، په

همدې زمانه کې وه، چې سوداګرو په تدریج سره، د پانګې په کار اچولو لار، د دفترونو ساتل او د اعتبار د خلاصولو مقررات زده کړل. په ۱۴۰۷م کال کې هم د نوې زمانې لمړنی بانک د «ژن» په ښار کې منځ ته راغی.

**د سینیورانو او پاچایانو په دستګاه کې د بورژواګانو نفوذ:**

له همدې کبله چې د اعتبار پرانیستل دود شول، احتکار خپور شو. وړل راوړل اسان شول. د سوداګرۍ نمایندګیو او د هغو استاذو او ان هغو کسانو ته، چې لړشانې اقتصادي ځواک یې لاره، د سوداګرۍ او ګټې لاس ته راوړلو لار پرانیستل شوه. له هغه ځایه چې د ښارونو مقررات مخ په وده وو، د چوپړو پوځونو ساتلو لګښتونه او د ګرمې وسلې کارول ورځ په ورځ زیاتېدل، پاچا او سینیوران اړ شول، چې ځان نه چاپېره یو شمېر مشاوران او راز راز چارواکي ولري، چې هغه کارونه، چې د اسیلانو له توانه بهر وو او اسیلانو هغه د خپل لویوالي سره وړ نه ګڼل، سرته ورسوي. دې کسانو دنده لرله، چې

مالي چارې اداره کړي او د خپلو اربابانو خزانه تشه پرې نږدي او په دې لار کې د هغو له هر راز دوکې او غلطيو څخه سترګې پټې کړي. په دې توګه يوه نوې طبقه رامنځ ته شوه، چې د پانګې په کار اچولو او د ګټې لاس ته راوړلو په لار کې هيڅ قيد او بند باندې تړلي نه وو او د ښارونو پخوانيو اربابانو په شان يې هيڅ راز مقررات سپيڅلي نه ګڼل. دا طبقه، هغسې چې وړاندې مو وويل، عمومن د سوداګرۍ استاذو او دلالانو، چې وروسته پانګه وال شول، جوړوله.

د ۱۴مې او ۱۵مې پيړۍ ټول پانګه وال اړ وو، چې ځانونه شاهزويانو او سينيورانو پورې وتړي او له دې کبله د هغو تر منځ د ګټو د جوړښت له پلوه ټينګې اړيکې پيدا شوې. له يوه پلوه سينورانو کولای نشول، چې پرته له دغې طبقې خپل عمومي او ځانګړي لګښتونه اداره کړي او له بله پلوه لوی سوداګر او بانک لروونکي په سينيورانو باندې يې تکيه کوله، ترڅو هغوی د ښارونو کلکو مقراراتو په هکله خپل ملاتړ وګرځوي، د هغو په لاس د ځان مخالف پاڅونونه کرار کړي او د خپلو پيسو او کاليو

بهير تضمين کړي. ټولنيزو او انقلابي خوځښتونو چې ځومره ډېره وده کوله، هغه کسان يې، چې دا خوځښتونه د دوی پر ضد وو، لا زيات د يوه لوی ځواک په لور، چې د دوی پناه ځای وي، جلبول.

**د هېوادونو د سوداګرۍ او صنعت نه ملاتړ:** د ښارونو انحصاري مقررات له سياسي پلوه سينيورانو ته او له اقتصادي پلوه ټولو هغو کسانو ته، چې ياد شوي مقررات د هغوی لپاره خنډ ګرځېدل، زيان راوړونکي وو.

له دې کبله د بېلګې په توګه په فلاندر (د بلژيک په شمال لويديز) کې کوچنيو ښارونو له سينيورانو څخه غوښتنه وکړه، چې هغوی ته د لويو ښارونو له استبداد څخه خلاصون ورکړي. د هغه ملاتړ له امله، چې د کليو له صنايعو څخه پلی شو، د ۱۴مې پېړۍ په نيمايي کې يو شمېر کليو ته اجازه ورکړل شوه، چې په ټوکر اوبدلو بوخت شي. په دې توګه د ټوکر اوبدلو کارګاوې منځ ته راغلې، چې هم يې له فني پلوه او هم يې د کار د شرايطو له پلوه د پخوانيو کارګاوو سره توپير لرلو، په دې مانا چې نه يوازې

لوکس توکرونه یې تولیدول، بلکه کم ارزښته توکرې یې هم جوړولې او د کار په رژیم کې ازادي د صنعتي باندېوالتیاوو ځای ناستې شوه. په دې دورکې کارپورېشنونه له منځه ولاړل او په هغه حال کې چې پاتې شول، په هغو کې نفوذ د وګړو لپاره اسان شو او دې نوي صنعت د پانګه وال صنعت بڼه ځان ته ونیوه، په دې مانا چې کارګر له کاروړکوونکي سره مخامخ کېده او له هغه سره یې تړون تړلو او خپل مزد یې له هغه سره ټاکلو. په پای کې د کلیو صنعت د پانګه والۍ سرلیکه جوړه شوه.

تر دې دمه پاچایانو او سینیورانو له سوداګرو نه ملاتړ کولو او له سوداګرۍ څخه یې د لارساتلو د حقونو اخیستلو له لارې ګټه پورته کوله او د جګړې په موکه کې یې سوداګریزې اړیکې شلولې، خو د خپلو ابلانو اقتصادی فعالیت یې ازاد پرېښودلی ؤ.

له یوه پلوه د سینیورانو واکونه د دوی په سېمې پورې محدود وو او له بله پلوه د بېلابېلو سیمو مقررات لامل کېدل، چې هغوی په خپلو کې جوړښت ونلري او ونکولای شي د عمومي ګټو سره سم او ځانګړو ګټو سره ضد مقررات وضعه کړي. خو

په تدریج سره د ۱۴مې پېړۍ په پای او د ۱۵مې پېړۍ په پیل کې دولتونو هڅه وکړه، چې د خپلو اېلانو صنعت او سوداګرۍ څخه د بهرني صنعت او سوداګرۍ په وړاندې ملاتړ وکړي او د دې کار لپاره یې ښارونه سرمشق وګرځول او د هغو سیاست په حقیقت کې هماغه د ښارونو سیاست ؤ، چې د دولتونو تر هانده وغزول شو.

تر هغې موکې پورې دولتونو د بهر سره سوداګرۍ لپاره هېڅ راز بندیزونه قایل نه وو، خو تر هغه وروسته یې د ښارونو په دود ځانونو لپاره باندېوالتیاوې او انحصارونه جوړ کړل او دا امر لمړی ځل په انګلستان کې، چې له نورو هېوادونو ډېر د دولت د یووالي څښتن ؤ، رابرسېره شو.

*****

## ۲۷

## ۱۶مه پېړۍ په صنعت او سوداګرۍ کې لوی بدلونونه

**د افریقې له سهېل څخه د هندوستان د لارې موندل کېدل:** سلیبي جګړو په پای کې د مسیحیانو په بري پای ونه موند، په دې مانا، چې فلسطین د مسلمانو ترکانو په لاس کې پاتې شو او قسطنطنیه یې هم په ۱۴۵۷م کال کې فتح کړله.

ترکانو د مدیترانې د شمال سوداګریزه لار، یانې هغه لار چې د ژن (د ایتالیا له بندرونو) راتلله او له تور سمندرګې نه تېرېدله، وتړله. خو له هغه ځایه چې په کال ۱۵۱۶م کې یې مصر هم فتحه کړ (د فاتح سلطان محمد په لاس) د مدیترانې د سهېل سوداګرۍ بېرته رونق وموند او د سره سمندرګي او سکندریې لار بېرته پرانیستل شوه.

له هغه ځایه چې د مدیترانې د شمال سوداګري له رونقه ولوېده او ایټالیا، چې مهم سوداګریز ښارېې

«**ونیز**» ؤ لـه نـږدې ختيـز سـره يـې تقـريبن اړيکـې وشلولې، هغه هېوادونو چې لـه ونيـز او د ختيـز نـورو ښارونو سره سوداګري کوله، په هڅه کې شـول، چـې ګواکې د قسطنطنيې څخه پرته بله لار د هندوستان په لور وموندي. ولې چې د هغـوی عمـده سـوداګري مرچ، سونډی (زنجبيل) او نور لېرموندونکي درملونـه وو، چې له هندوستان څخه لاس ته راتلل.

پرتګاليـان پـه دې خيـال چـې د مـراکش پـه مسلمانانو له سهېل لـوري يرغـل وکـړي او ځانونـه د ختيز هېوادونو ته ورسوي، د ۱۵مې پېـړۍ پـه لمـړې نيمـايې کـې يـې د افريقـې لـه لويـديزو څنـډو نـه پـه ښکته راتلو پيل وکړ. په لمړي سر کې، لـه هغـه ځايـه چې سمندر يې نه پېژانده، سرعت يې خورا سـوکه ؤ، خو ورو ورو يې چټکتيا ومونده، هسې چې پـه کـال ۱۴۶۰م کې شنه جغ (دماغې) ته ورسېدل او له هغـه ځايه چې پوه شول، چې په دې سيمو کـې هـم پرګنـې شته او له هغو ځايوو نه کولای شي، مريان او د سـرو زرو دوړه لاس ته راوړي، تشـويق شـول او د دوی يـو

سمندر وهونکی په ۱۴۸۵م کال کې د هیلې لـه جـغ
ښخه، چې د افریقې جزیرې پـه سـر کې پرتـه ده، تېر
شو او خبر يې راوړ، چې د افریقې څنډه د شـمال پـه
لور پورته راځي.

دې خبر د بري هيله زياتـه كړه او پرتګاليـان پـه
پـای كـې پـه ۱۴۹۸م كـال كـې بريـالي شـول، چـې
هندوسـتان، چـې افريقـې تـه مخـامخ پـروت دی، د
سهېل له لارې ومومندي.

ژر ټول پوه شـول، چـې د هندوسـتان نـوې لاره
ډېـرې ښـېګڼې لـري. پخـوا د دې لپـاره چـې د
سـوداګرۍ مـال ختيـز تـه ورسـوي، بايـد لـه سـره
سـمندرګي څخـه، چـې تنـګ او پـه سـتونزو سـره د
تېرېدو وړ ؤ، تېر شي. د سـوداګرۍ مـال پـه عـدن او
جدې کې بلې بېړۍ ته منتقل کړي، موافقو بادونو ته
تم شي، په زمكنيو واټونو کې هـم د لارسـاتلو حقونـه
پرې كړي، په سپكو بېړيو سره د نيل لـه سـينده تېـر
شي او په سكندريې كې كالي بلې بېـړۍ کـې كېـږدي
او حال دا چې په نوې لار کې دې ټولو زيارونو تـه اړه
نه وه.

پرتګالیانو د هرمز جزیره د ایران په سهېل کې په ۱۵۰۷م کال کې ونېوله او سور سمندرګی او د فارس خلیج یې، چې د مصر او سوریې دوه سوداګریز بنسټونه وو، خان ته ځانګړي کړل. وروسته یې هم عدن ونیوه او مصري بېړۍ یې تر یرغل لاندې ونېولې.

کله چې پرتګالیان په سمندریزو لارو مسلط شول، مسلمانو سوداګرو سره یې په نښتو پیل وکړ او د هغو جګړې په حقیقت کې د مرچو او سونډي د سوداګرو صلیبي جنګ ؤ.

په دې جنګونو کې عجیبې ځناورتیاوې پلې شوې او هر راز کړنه د مسلمانانو پر ضد جایزه وشمېرل شوه. **اور لګول، عام وژنه، کلابندي، د ودانو ښارونو ورانونه، د بېړیو سوزول سره د کارکوونکو، د بندیانو د سرونو پرې کول او «بربرو» پاچایانو ته د هغو د پزو او غوږونو لېږل، دا وو د هغو کسانو کړنې، چې پر ځانونو یې د مسیح سپارو نوم ایښې ؤ.**

**د امریکې کشف:** شپږ کاله مخکې له دې چې دا لار وموندل شي، یانې کریستوفر کلمبوس، چې هغه هم د هندوستان موندلو لپاره په سمندر وهلو بوخت ؤ، امریکا یې کشف کړله.

دا سړی د «ژن» د بندرګي اوسېدونکی ؤ او څېړنه یې کوله، تر څو د هندوستان لار د ختیز له لوري ومومندي او د دې لپاره چې د دې کار وزلې چمتو کړي، پرتګال ته ولاړ.خو په هغه ځای کې بریالی نشو او اسپانیې ته یې سفر وکړ. د اسپانیې پاچا له هغه سره دا ومنل او درې بېړې یې ده ته ورکړې. کلمبوس د اسپانیې سهېل لویدیز لوري ته روان شو او په هماغه کال کې د امریکې جزیرو ته ورسېدو. کلمبوس څلور ځلې نور هم امریکې ته سفر وکړ او تر ۱۵۰۶م کال پورې چې مړ شو، فکر یې کاوه، چې هندوستان یې کشف کړی او نه پوهېدو، چې هلته نوې سیمه ده.

کله چې کلمبوس د امریکې لمړنې جزیرې کشف کړې، ټولو دی وښکنه، چې د هند د هېواد د موندلو لپاره یې بده لار ټاکلې او حال دا چې

پرتګالیانو بنه لار موندلې ده. دی یې ملامت کړ، چې د ده زمکې لیږ سره زر لري، له دې کبله د سرو زرو حرص د کلمبوس ځای ناستي اړباسل، چې د لویدیز خواته مخکې لاړ شي.

**امریکا د کلمبوس له کشفه وړاندې:** پراخې وچې، چې د هند لار یې په سمندر وهونکو بندوله، واقعن نوې نړۍ وه او له عجایبو څخه ډکه. په بشپړه توګه د کریستف کلمبوس نه مخکې امریکه د تمدن له پلوه د زمکې د کرې له نورو سیمو څخه وروسته پاتې وه. ډېر ولسونو هلته د تاریخ نه وړاندې ژوندانه په دود یې ژوند کولو، په هغه توګه چې که وغواړو د امریکې د هغه وخت تر ټولو ځلاند تمدنونه له نورو تمدنونو سره پرتله کړو، باید هغوی د کلدې، مصر او چین له پخواني تمدن ته ورته وګڼو.

په دې سیمه کې هغه څه چې د اروپائیانو پام تر هر څه ډېر جلب کړ، د امریکې بې شمېره سره زر، سپین زر، مرغلرې او مرجان وو، چې د هند د درملونه یې له یادونو څخه واېستل. بلې سوداګرۍ چې خورا ډېره ګټه لرله، هغه د دې خاورې د خلکو

سوداګري وه، چې هغو يې ښکارول او په اروپاکې يې د مريه په نامه پلورل. اصولن وروسته له دې چې امريکه کشف شوه، روحانيانو تر مودو پورې بحث کولو، چې آيا د دې خاروې خلک روح لري او که نه!

**د امريکې له بوميانو سره د اروپائيانو د چلند بېلګه:** هماغه شان مو چې وويل، هغه څه چې اروپائيان يې امريکې ته جلب کړل، د هغې سره او سپين زر وو. له دې کبله ورځ په ورځ د هغو پېښې لټو شمېر، چې په سرو زرو پسې يې ځغستل، ډېر شو او دغو سره د دې چې ځانونو ته يې د مذهب رنګ هم ورکولو او ويل يې، د ځناورو مسيحې کولو او د خدای رضا لپاره هغې خاورې ته ځي، له هېڅ ډول ځبرنې نه يې ډډه نه کوله. دا دي د هغو د چلند څو بېلګې:

اسپانويانو مکسيکو فتحه کړله. د مکسيکو وروستني پاچا چې ډېر مقاومت وښوده، په پای کې ونيول شو او هغه يې په دار وځړاوه، خو وړاندې له دې چې دار ته وخېږول شي، دی يې په سره اور

ځملاوه، تر څو خپل ګنجونه ښکاره کړي! نامتو ده، چې وزیر یې هم په همدې شکنجې اخته کړی ؤ او هغه تر زاریو ډکو کتلو سره له پاچا څخه غوښتنه وکړه، چې دومره په شکنجې کې پاتې نشي او ګنج څرګند کړي. پاچا ده ته مخ راواړولو او ویې ویل: «آیا زه څه د ګلو په پاڼو وېده یم؟»

په همدې موکه کې د دو کسو اسپانویانو وژل کېدلو اسپانویانو ته پلمه په لاس کې ورکړه او هغو قاتل کس او نور ۱۵ کسه بومیان ونیول او ژوندي یې په اور وسوزول!

هسې چې مؤرخانو لیکلي دي: د مکسیکو په نېولو کې ۶۷،۰۰۰ کسه له بومیانو څخه په جګړه کې او ۵۰،۰۰۰ کسه له هغوی څخه د ناروغیو له کبله مړه شول! که دا رقمونه که څه هم مبالغه جن وي، څرګندوي، چې د بومیانو په وژلو کې څومره هڅه سرته رسېدله.

د «پیرو» په نېولو کې هم اسپانویانو په یوه خبره ۲،۰۰۰ او په بله خبره ۱۰،۰۰۰ کسه اوسېدونکي ووژل، په دې حال کې چې دوی خپله یو

کس زخمي هم نلرلو، ولې چې دوی په ګرمې وسلې سمبال له هغو کسانو سره، چې د دفاع لپاره یې هېڅ ځواکمنه وسله نلرله، مخامخ کېدل.

**د امریکې د سرو زرو کچه:** ونزویلا د سرو زرو خاوره وه او په هغه کچه سر زر یې درلودل، چې کورني لوښې یې هم له سرو زرو څخه جوړول. د هغو کسانو څناورتوب، چې دې خاروې ته ورغلل، هومره وه، چې هغه ځای یې له نفوس څینې تش کړ د مریانو په یوه بازار یې بدل کړ.

لیکي، چې له ۱۵۳۳م کال څخه وروسته له «پیرو» څخه یې له سلو میلیونو فرانکو څخه پورته سره زر او د هغه دوه ځله یې سپین زر بهر کړل.

د امریکې او اسپانیا ابرې یې د ۱۵۴۱م – ۱۵۴۴م کلونو په منځ کې نږدې ۱۷میلیونه فرانکه اټکل کړې دي.

**انګلستان څنګه شتمن شو:** داسې ښکارېده، چې د اسپانیې او پرتګال سوداګریز او مالي ځواک نه ماتېدونکی دی او د امریکې سره زر په ځانګړې توګه د دوی دي او د نورو هېوادونو سوداګر او د هغو له

ډلې نه انګلستان باید لـه لېـرې ځخـه دا دسـترخوان یوازې بوی کړي. د هغو یوازېنې هیله دا وه، چې لـه هغــه ځایــه چــې اســپانویان لــه ســهېل لویــدیز او پرتګالیان له سهېل ختیز ځخـه هندوسـتان تـه روان شوي دي، کېدای شي لـه شـمال ختیـز او یـا شـمال لوېدیز ځخـه کومـه لار شـتون ولـري، لـه دې کبلـه انګرېـز سـیلانیان لـه دوو خـواوو ځخـه پـه هڅـو کـې شول، خو کوم ځای ته ونه رسېدل.

البته د انګریز پاچایانو جرئت کولای نشو، چې له اسپانیې سره ووهـي، خـو د انګلسـتان سـوداګرو پـه دې کـې هـېڅ کومـه ګټـه نلرلـه، چـې دا تـړون درون وشـمېرې او د نـړۍ شـتمنو سـیمو تـه ولاړ نشـي. د انګلستان سمندریزه غلا په ۱۵مې پېړۍ کې مشهوره وه او په ۱۶مې پېړۍ کې د وطن پرسـتۍ هانـدونو تـه ورسـېده. د سـمندریزې سـوداګرۍ او غـلا تـر مـنځ کومه ټاکلې جلا کوونکې کرښه نه وه او د غلا ځینـې ډولونـه اصـولن قـانوني شـمېرل کېـدل، د بېلګـې پـه توګه که کوم بېړۍ چلونکی د بهرنې بېړې لخوا لـوټ شوی وای، حق یـې لاره، چـې د هغـه بـدل لـه هـرې

بېړۍ ځخه، چې د هغه هېواد څخه وي، واخلي. انګرېز بېړۍ چلوونکي، چې په توپو سنبالې بېړۍ يې لرلې، خپله دنده يې رسمن د پرتګالي بېړيو په لوټ، چې له هندوستان نه راستنېدې، بدله کړې وه.

**جان هاوګينس** لمړنی کس ؤ، چې هڅه يې وکړه، تر څو د اسپانيې له مستعمرو سره منظمه سوداګري روانه کړي او له هغه ځايه چې سوداګر او بېړۍ چلوونکی هم ؤ، په ۱۵۶۲م کې يې يو شمېر مريان د ګينې له جزايرو څخه اوچت کړل، هغوی يې د اسپانيې په مستعمرو کې په سونډي او قند باندې بدل کړل، دا لمړنی سفر لامل شو، چې جان هاوګينس د انګلستان تر ټولو شمن سړی شي او نور د ده نه په تقليد بوخت شي.

«فرانسيس دراګ» د انګلستان يو زړور بېړۍ چلوونکی ؤ. دې سړی په بشپړه توګه په غير قانوني کارونو لاس پورې کړ او دېبلګې په توګه له دوو بېړيو او پنځوسو کسانو سره د «پيرو» د سمندر په څنډو کې پلی شو، د کچرو کاروان يې، چې بار يې سره زر وو، لوټ کړ او سره زر يې په بېړۍ کې واچول او

انګلستان ته یې راوړل او الیزابت د انګلستان ملکه په باطن کې له دې غلا نه خوښه شوه.

«دراک» په ۱۵۷۷م کال کې په اوږدې پردېسۍ روان شو او غوښتل یې چې له نړۍ نه چاپېره وګرځي. دا سفر د څو کسو شریکانو په پیسو، چې له هغو څخه یوه د انګلستان ملکه الیزابت وه، پلې شو. د انګلستان ملکې دا کړنې رسمن د غندلو وړ ګرځولې، خو په باطن کې دا خپله په هغو کې شریکه وه.

دا ځل د «دراک» بېړۍ، چې په توپونو سمبال وه، څو سوه سړي پکې وو. په هر ځای کې چې د «دراک» بېړۍ لنګر اچولو، د ښار حاکم ډارېدلو او که حاضر نه وای، چې تحفې ورکړي، هغه ښار یې د توپونو تر اور لاندې نېولو. خو دراک په دې تحفو قناعت نه لرلو او د ده اصلي ولجه دا وه، چې د سرو زرو وړوونکې بېړې ونېسي. اتفاقن «پانامې» ته نژدې یو بومي کس، چې د انګریزانو او اسپانویانو تر منځ یې توپیر کولای نشو، خیال یې وکړ، چې دراک د ده د اربابانو له ډلې څخه دی. هغه یې هغه خلیج

خواته بوتلو، چې له سرو زرو ډکې بېړۍ هلته لنګر اچولې ؤ. دراګ هم ماتل نشو، صندکونه یې خلاص کړل او په ۱۵۸۰م کال کې د انګلستان ملکه الیزابت له دې ولجې نه لویه برخه یووړه و وایي، چې نورو شریکانو هم د خپلې برخې ۴۷۰۰ په سلو کې ګټه پورته کړه.

کله چې دا خبر اسپانیې ته ورسېده، خورا غوسه او غضب یې راوپاراوه، د اسپانیې سفیر په لندن کې دنده واخیسته، چې دې کار پر ضد اعتراض وکړي. الیزابت وویل، چې له دې کار نه هېڅ خبر نلري او قول یې ورکړ، چې دا به وروستنی یرغل وي، چې د اسپانیې جاګیرونو باندې کېږي. خو برسېره پر دې د سمندریزو ځواکونو په تجهیز لګیا شوه او وسله یې وپېروده او دراګ ته یې د لویانو لقب ورکړ. له دې کبله څرګنده وه، چې د انګلستان او اسپانیې تر منځ باید جګړه پیل شوې وای او دا یو اړوند دی، چې رسوي، چې **جنګ د دولتونو تر منځه عمومن اقتصادی لامل لري او هغه څوک یې په لار اچوي،**

**چې غواړي خپلې نامشروع ګټې وساتي، خو له هغه ځایه چې کولای نشي خپل دغه ټیټ نیتونه څرګند کړي، د وطن پالنو احساساتو پړتمین او ځلاند رنګونه پرې وهي، تر څو وکولای شي، د ولس وګړي، چې هېڅ راز ګټه په دې حریصیزه جګړو کې نه لري، په لا ساده توګه وژلو ته وځکوي.**

سر فرانسیس دراک، د انګلستان د جنګي جازونو په سر کې ودرېدو او د اسپانیې د مستعمرو په ورانولو یې پیل وکړ او ښکاره یې کړه، چې انګریزي بېړۍ حق لري، په هغو ځایونو کې تګ راتګ وکړي.

**کارپورېشن خپلې بنې له لاسه ورکوي:**

پانګه وال اقتصاد پرمختګ کولو. هماغسې مو چې وویل، سیمه ایزه سوداګري د کارپوریشن په دقیقو مقرراتو او د ښارونو په اقتصادي ملاتړ پورې تړلې وه، خو دا بندیزونه په لویې سوداګرۍ کې نه وې او لویه سوداګري یوازې د سوداګر شخصي ارادې ته اړل وه، چې نه یې غوښتل په هېڅ بندیز پورې تړلي وي، د دې دور سوداګرو د بېلګې لپاره

کولای شو لـه فرانسـوي ژاک کـور (۱۳۹۵ – ۱۴۵۶) څخـه نـوم واخلـو. لـه دې سـړي څخـه، چې خپلـه شتمني یې د دوکې، جعل او احتکار له لارې لاس ته راوړې وه او سم چاري سوداګر یې ماتې سره مخ کـړي وو، کلـه چې پـه سکې کـه د جعـل پـه جـرم د قبرس جزیـرې تـه تبعیـد شـو، د ۲۲ میلیونـو فرانکـو سرو زرو سره برابـره شـتمني، یـوه لویـه مـانۍ او څـو هوټلونه په پاریس او نورو ښارونو کې او نږدې دیرش ټوټې زمکه ترې پاتې شوې وه.

د ژاک کـور برخـه لیـک د نـورو ډېـرو سـوداګرو برخـه لیـک ؤ. د ۱۵مې پېړۍ تـاریخ لـه نویـو سـړیو څخه، چې د ده په شان یې خپله شـتمني د احتکـار، انحصار، او د اعتبار څخه د نـاوړې ګټې پورتـه کولـو له لارې لاس ته راوړله، ډک دی.

البته هغه کسان، چې دومره یې په شتمنۍ پسې ځغستل، په هېڅ وجه په مقرراتو پورې تړلي نه وو. د دغو او وړو پورژواګانو تر منځ، چې پـه کارپورېشـنونو کې ټول شوي وو او زړو عقایدو بانـدې یـې بـاور لاره او غوښـتل یـې چې سیالي منعـه کـړي او د بَیـو لـه

پورتــه تللــو او د لمړنيــو مــوادو لــه ګــړم تــه تېرولــو مخنيوی وکـړي، هــېڅ د ورتــه والـي وجـې شـتون نـه لاره. خو نـور چـا کـولای نشـول ځـان لـه هغـو لومـو څخـه، چـې پـانګې غـوړولي وې، وژغـوري، نـور چـا کـولای نشـول د پـانګې د کړنـو مخنيـوی وکـړي. پـه هغې ټولنې کې، چې هلتـه ترانسـپورتي وسـايل ډېـر دي او هلتــه چـې د پيسـو ځـواک پراختيـا مـومي، د ښاري اقتصاد ملاتړ غوښـتنې نشـي کـولای د بهرنـې سوداګرۍ د يرغل په وړاندې کوم بند جوړ کړي.

د وړو کارګاوو کسبيانو بله هېڅ درملنه نه لېدله، پرته له دې چې ځان نه چاپېره ديـوال وکـاږي او چـا ته په کارپورېشن کې د ننوتلو اجازه ورنکړي. لـه دې کبله ورځ په ورځ په کارپورېشن کې د ننوتلو شـرايط لا ستونزمن شـول او کارپورېشـنونو هـر يـو کسـب يـو شمېر ښوونکو تـه محـدود کـړ، چـې هغـه کسـب يـې خپلو ماشومانو ته په ميراث ورانتقالولو. پـه هـر ښـار کې سيمه ايز صنعت د پاترنانو شرکت ته منحصـر يـو باندې والـی جـوړ شـوی ؤ. نـور کـارګر کـولای نشـول هيله مند واوسي، چې د ښوونکي پوړ تـه ورسـېږي او

ورو ورو د پرولتاریا وضعیت ته نږدې شو او په پای کې بورژوازي د ځو کسو کسبیانو د زبېښاک په منګلو کې، چې هغو ته پر کارګرو پرګنو برسېره بانډې والې ورکړ شوی ؤ، ولوېده.

**د ملي اقتصاد منځ ته راتلل:** پخوا مو څرګنده کړه، چې له ښاري صنایعو څخه ملاتړ ځنګه د هېوادونو د صنایعو څخه په ملاتړ بدل شو. ورو ورو د ښارونو اقتصاد په ملي اقتصاد بدل شو او بازارونو نوی نقش وموندہ. دا بازارونه که څه هم کله نا کله یوځل جوړېدل، خو نور د هېوادونو د سوداګرو د لنډمهاله پناه ځای په توګه نه شمېرل کېدل، بلکه ملي بنه یې ځان ته نېولې وه. په دې مانا چې بازارونه داسې یوه وسیله وه، چې دولتونه وکولای شي هغه تجارتي معاملې، چې عمومن د دوی د ګاونډیو په ضرر ترسره کېدلې، په خپل هېواد کې سرته ورسوي. ورو ورو د سیالۍ فکر نه یوازې د سوداګرو تر منځ، بلکه د ولسونو په منځ کې هم رامنځ ته شو او د بېلګې په توګه د لیون بازارونه د فرانسې د اقتصادي چارو استاذي شول. د لیون دا

بازارونه د فرانسې سلطنت منځ ته راوړې او پراختيا يې ورکړې وه، تر څو د ژنېو د بازارونو سيال واوسي.

په دې توګه د دولتونو تجارتي چارې پيل شوې او هڅه يې وکړه، چې ملي اقتصاد ته ورځ په ورځ لا ډېر رونق ورکړي. خو ملي اقتصاد، چې تازه رامنځ ته شوی ؤ، کولای يې نشول په خپله هېواد پورې محدود پاتې شي، ولې چې لږ داسې هېواد شته، چې خپل ضرورتونه ګرد د هېواد له منځه بشپړ کړي، په ځانګړې توګه چې دوو کاليو په دې دورکې عمده نقش لرلو: يو حبوبات، چې په ځينو سيمو لکه د سيسلي په جزيرې کې خورا ډېر لاس ته راتلل؛ بل مالګه، چې يوازې په ځينو سيموکې موندل کېدله او په هماغې سيمې پورې منحصره وه، د بېلګې په توګه په سويس او د هغه په خوا او شا سيموکې د مالګې توليد د سويسيانو په لاس کې د سياسي نفوذ او سيالۍ لپاره يوه وزله وه. نو وينو چې، په ځانګړې توګه د دوو کاليو د شتون له امله، چې ځينو هېوادونو ته يې ځانګړتيا لرله، هېڅ هېواد کولای

نشول په ځان باندې سبره (اکتفا) وکړي او نورو ولسونو سره مبادلې او سوداګرۍ ته اړ نه وي.

دولتونو هماغسې چې ملي اقتصاد یې رامنځ ته کړ، غوښتل یې چې د سمندرونو چاپېریال اړیکې د ځان لپاره منحصرې کړي او په بل عبارت سره غوښتل یې چې هغه اړیکې هم «ملي» کړي، د بېلګې په توګه د انګلستان سمندري سیاست د اووم هانري (۱۴۸۵ ـ ۱۵۰۹) په وخت کې پیل شو.

اووم هانري د دې لپاره چې انګرېز بېړۍ چلوونکي وزګار پاتې نه شي، امر یې ورکړ، چې د فرانسې شرابونه نباید انګلستان ته حمل شي، مګر دا چې په انګلیسي او آیرلندي بېړیو پر سر – بیا یې دا دود د نورو هېوادونو د شرابو په هکله هم پلې کړ. برسېره پر دې یې پرېکړه وکړه، چې انګرېزان په انګلیسي بندرونو کې نشي کولای خپل مال د پردیو بېړیو پر سر کېږدي، مګر په هغه حال کې چې په هغه بندرونو کې تشه انګرېزې بېړۍ نه وي.

په هغه دوره کې وضعه هسې وه، چې یوازې ګران بیه ابرو او لوړبیه فلزونو کولای شول، چې د

سمندر هغې غاړې لوی تجارت وړ وګرځي او درمل د ګرانو ابرو په سر کې پروت ؤ.

له هغه ځایه چې دا کالي له ځانګړو سیمو څخه لاس ته راځي، له هغه ځایه چې لازمه وه، چې اوډلې (مرتبې) او په وسلو سمبالې بېړۍ د دې جنسونو د حمل او نقل لپاره پکار واچول شي، له هغه ځایه هغه کالي، چې بېې يې د ناڅاپه تغییراتو سره مخ وې، باید ګدام او وساتل شي، دا ټول عوامل لامل کېدل، چې سوداګري د یوه عمومي خدمت بڼه ځان ته ونيسي او له دې کبله باید یو انحصاري او ان دولتي انحصار شتون وموميي.

په دې شان د بېلګې په توګه د مرچو سوداګري د پرتګال پادشاه په انحصار کې وه او هغه نورو ته تړونونه ورکول.

د هندوستان ټول تجارت د لیزابون (پرتګال) په بندر کې ګدام کېدل. ټاپه شوي صندکونه هلته راتلل او یوازې ټاکل شویو کسانو د درملونو خرڅولو حق لرلو، صادراتي کالي هم دوی ټاکل.

ان هغو کسانو چې مجاز لرلو، خپل جنسونه يې بايد د پادشاه د چوپړو له لارې وارد کړي او خپل نيمايي مرچ پادشاه ته ورکړي.

د سوداګرۍ دا انحصار په نورو هېوادونو کې هم دود شو، خو له دغو سوداګرو پاچايانو ځخه يوه هم د بېړيو په وسلو سمبالولو او د صادراتي کاليو د بارولو لپاره ضروري پانګه نلرله او په همدې توګه يې کولای نشول، چې درملونه او ګران فلزات اروپا ته چمتو کړي او له دې کبله غالبن د بارچلولو دنده لرونکو سره يې اړيکه نېوله. د بېلګې په توګه د ليزابون ښار، چې سل زره نفوس يې درلوده (د هغه نفوس د يوې پېړۍ په ترځ کې درې برابره شوی ؤ)، سره د دې چې د هغه بندر تل ډک ؤ، سره د دې چې پادشاه د ګمرکي تعرفو، انحصاري ابرو او د هند د پادشاه د باجونو له کبله لويې ګټې پورته کولې، هغو ملتونو ته، چې د سوداګرۍ له پلوه د ډېرو ښو تشکيلاتو خاوندان وو، د معاملو مرکز شوی ؤ او د بلژيک او هالند بارچلونکو او د جرمني بانک لرونکو هلته لاسوهنه کوله.

### د غربي اروپا د اقتصاد ځانګړتياوې د ۱۵مې پېړۍ په پای کې:

په لنډه توګه څلور ټکي مهم دي، چې د لوېديزې اروپا اقتصاد د ۱۵مې پېړۍ په وروستيو او د ۱۶مې پېړۍ په پيل کې ځانګړې کوي:

۱ – د اقتصادي ځواک ملي کول.

۲ – د ملي اقتصادونو پراختيا او د هغو مبادلاتي چارې له يو بل سره.

۳ – د معاملو بې سارې ډېربښت او د بازارونو پراختيا.

۴ – دهغو دولتونو ترمنځ، چې هر يو يې په يوه اقتصادي واحد باندې بدل شوي ؤ، د سوداګريزو ټرونونو ټرل کېدل.

**فلزاتو ته اړتيا:** له هغه ځايه چې کاليو ته اړتيا ډېره شوه، د سکو ضربولو ته يې هم اړتيا ومونده او له دې کبله ګرانو فلزونو پسې شول او دا مسئله د هغو لاملونو څخه يوه وه، چې جغرافيايي اکتشافات يې رامنځ ته کړل.

اروپايـان وړانـدې لـه دې چې اټکـل وکـړي، چې سره زر او سپين زر د سمندر هغې غـاړې تـه مونـدل کېږي، د هغو معدنونو په ايستلو يې پيل وکړ، چې په خپله اروپا کې د رومیانو په دور کې ايستل کېدل، خو وروسته د ګټې پورته کولـو څخـه پاتې شـوي وو. پـه دې توګه د سرو او سـپينو زرو د معـدنونو ايسـتل لـه ۱۵مې پېړۍ راهيسې په تودښت سره پيل شول.

البته يوازې ګران فلزات نه وو، چې د دولتونـو د اړتياوو لپاره په سوداګرۍ کې کارېدل، بلکه معمـولي فلزات هـم، چې پـه جګړې کې کـارول کېـدل او پـه ځانګړې توګه مـس، چې د توپخـانې پـه جوړولـو کې کارېدل، د لټولو وړ وه او د هغې د مونـدلو لپـاره يـې هم د اروپا ځمکه په هر ځای کې وکنله.

د ۱۵مې پېړۍ په پای او د ۱۶مې پېـړۍ پـه پيـل کې د فلزاتو د حمل او نقل لپاره اړتيا لـه هـره وختـه زياته حس شوه او د پيسو د پېرودلو ځـواک پـه لـوړه توګه پورته لاړو، خو وروسـته لـه هغـه چې د امريکې سره او سپين زر اروپا ته رانوتل، د جنسـونو بيـو پـه

کلکه سره پرمختګ وکړ او عمومن ۱۵۲۴م کال د دې پرمختګ پیل ټاکي.

**د بیه لرونکو پاڼو سوداګري – د اعتبار رامنځ ته کېدل:**

د ۱۶مې پېړۍ حکومتونه، هغسې مو چې وویل، د مرکزیت سیستم ته نږدې کېدل، خو د هغو د مالیاتو اخیستلو سیستم لا هم هغه فیوډالي سیستم ؤ. دې دولتونو، کله به چې جګړه پېښېدله، پیسو ته یې چټکه اړتیا موندله او حال دا چې د دوی عواید په ټاکلو کشتونو (اقساط) او په ټاکلو برخو کې لاس ته راتلل او دې ټکي دوی ته ستونزي جوړولې. له دې کبله د دې لپاره چې وکولای شي په هره موکه کې، چې اړتیا یې ځي، له هغې شتمنۍ څخه، چې په راتلونکې کې دوی پورې اړه مومي، ګټه پورته کړي، د سلطنت عواید او په همدې توګه مالیات به یې له وړاندې پلورل او ان کله نا کله یې دولتې غلې په ګروۍ کې ایښودلې او لنډه دا چې اعتبار ته اړ کېدل.

په دې توګه د پانګه والۍ یوه ځانګړتیا، یانې د بیه لرونکو پاڼو سوداګرۍ څخه د کالیو د سوداګرۍ

جلا کېدل را منځ ته شول. اعتبار، چې تر هغه زمانې پورې يوازې د معاملو د تنظيمولو يوه وزله وه، خپل په خپله په يوه ارزښت، د مبادلې وړ په يوه شي، چې د معاملې او انتقال وړ ؤ، بدل شو.

د اعتبار معاملې دغه توپير د کاليو له معاملې سره په بازارکې څرګند شو او د بېلګې په توګه د ليون ښار د لمړي فرانسوا (۱۴۹۴ – ۱۵۴۶) د حکومت له وخته په دې لور بدلون وموند.

دا بازارونه په هر کال کې څلور ځله د کاليو د مبادلې عمده مرکزونه ګرځېدل او ايټالوي، سويسي، جرمني او نورو سوداګرو په هغو ځايونو کې د اسپانوي سوداګرو سره معاملې کولې، خو د ۱۵ ورځو په موده، چې بازار پايښه لرله، پېرودونکو او پلورونکو په کومه توګه هم په کاليو سره معاملې سرته نه رسولې، بلکه د هغو معاملو د بيه لرونکو پاڼو له پېرودلو او پلورلو سره اړه لرله. په دې توګه بازارونه ورو ورو په بورس بدل شول او له دې وروسته حوالې، برات او د هغو په شان نور شيان دود شول.

د پیسو سوداګري ورځ په ورځ د کالیو مستقیمې سوداګرۍ په پرتله ډېرښت ومونده او بانک لرونکي په همدې موکه کې، د دې لپاره چې لوی مبلغونه ترلاسه کړي، په خپلې موکې سره شاهزویانو ته پور ورکړي او یا د درملونو او فلزاتو معاملې سرته ورسوي، د بېلابېلو کسانو سرمایو ته متوسل شول او ان هغو شیانو ته، چې موږ یې زېرمه او پاسره (پس انداز) بولو، د تمې لاس اوږد کړ، په دې مانا چې د وګړو زېرمې یې په پور واخیستې او پور ورکوونکو ته یې په ټاکلو مودو کې ثابته ګټه ورکوله. دا پاسرې په ځانګړې توګه له ۱۵۲۶م کال څخه راهیسې د یوه جرمني بانک لرونکي له خوا دود شوې. دا سړی د دې پرځای، چې د پور اخیستلو په موکو کې یوازې خپلوانو او دوستانو ته متوسل شي، هر چا ته متوسل شو او له ګردو خلکو څخه یې وغوښتل، چې خپلې زېرمې د ټاکل شوي سود په بدل کې ده ته په پور ورکړي.

دې سړي د همدې پورونو له لارې په لویو احتکارونو لاس پورې کړ او هڅه یې وکړه، چې د

لرګیو، شرابو او غنمو سوداګري په لاس کې ونیسي. دې سړي په ډېرو مبارزو سره د مسو، جیوې او ځینو نورو معدنونو انحصار تر لاسه کړ او کله چې په ۱۵۲۸م کال کې په خورا شورماشور سره دېوالی شو، ټوله موجوده جیوه یې هر کنتال (سل کیلوګرامه) ۸ فلورنه (د پیسو واحد) پېرودلې وه، تر څو په ۱۴ فلورنه یې وپلوري او وایي، په دې کار کې یې ۲۰۰،۰۰۰ فلورنه اچولې وې، چې د اسپانوي معدنونو سیالي لامل شوه، چې یو پر دریمې ضرر وکړي. شاهزویانو، کنتانو، اسیلو، بورژواګانو او ان چوپړانو او کورچوپړو خپلې پیسې له دې سړي سره ایښې وې او د هر فلورن په بدل کې یې ۵ فلورنه تنزیل اخیستلو. له دې ځایه اټکل وکړی، چې دې کس په خپلو معاملو کې څومره ډېره ګټه لرله او د ده کړنو د لګښت کوونکو پرګنو لپاره څومره ګرانه پایله لرله.

سره د دې په پام کې ونیسی، چې د دې سړي (دجیوې پادشاه) دېوالي کېدلو د جرمني په بېلابېلو

طبقـو کې ځـومره تزلـزل رامـنځ تـه کړ. دا د اعتبـار لمړنی بحران ؤ.

د دې قضيو له امله نه يوازې لوېې شتمنې، چې پنځوس کال د مخه يـې چـا فکـر نـه کولـو، مـنځ تـه راغلـې، بلکـه د پانګـه والـو يـوې نـوې طبقـې شـتون وموند.

**د بيه لرونکو پاڼو معامله د خلکو له نظره:**

عــام خلکــو د دې «تــازه دوران تــه رســېدلو» کورنيو په اړوند ښه نظر نه لرلو. د هغو کسانو لپـاره، چې د کوچني حجـم پـه کـارونو، د سـوداګرئ پـه وړو ګټو او د شتمنۍ د کچې په نسـبي ثابتـه پـاتې کېـدلو روږدي وو، د معاملو او لويو ګټـو پراختيـا، د وګـړو او کورنيو چټکه پرمختګ د اريانتيا او مخالفت لامل ؤ، په ځانګړې توګه هغه معـاملې، چې پـه هغـو کې يـوه ټوټه کاغذ د معاملو وړ ابرو ځای ناسـتی کېـدو. نېټـه ايزې معاملې، چې ټوله بيه او يا يوه برخه يې وروسته لـه ټـاکلې مـودې پـرې کېدلـه او د معـاملې پـه موکـه څرګنده نه وه، دا ډول معاملې، چې تـه بـه وايـې، پـر

هېڅ بنسټ شوې وې، د هغو کسانو په پام کې، چې ذهنونه يې له دې ډول معاملې نه تش وو، پردې راتللې. له بله پلوه دوی لېدل، چې پيسې څنګه د ځينو ټاکل شويو شمېر سره غونډې کېږي، څرنګه بيې پورته ځي، له دې کبله عمومن د دې نويو اوډنو سره وران وو.

خو ورو ورو لازمه شوه، چې پخواني قاعدې او قانونونه د سوداګريزو انقلابونو د فشار په وړاندې، يانې د قرض او تنزيل د اغېزو په وړاندې سر ټيټ کړي او خلک ناهوبله شول، چې د نوې اقتصادي وضعې غوښتنې ومني. دلته هم د دې ټکي د زبات له اړوندونو څخه يو دی، چې اقتصادي اړتياوې له تيوريو څخه خورا ځواکمنې دي.

ارسطو ويلي وو، مسيحي روحانيونو هم تصديق کړی ؤ، چې پيسې ماشومان نه زېږوي. ان «لوتر» د مسيحيت معروف سمونکی هم له هر ډول اعتبار سره وران ؤ. خو په تدريج سره، چې سوداګری پراختيا موندله، دا زوړ اصل يې باطلولو او ناچار د

دې لپاره چې سوداګریزو کړنو ته، چې پخپله روحانیت هم په هغه کې برخه ولرلای شي، د مذهب له ظاهر سره سمون ورکړي، شرعي خوله یې ورپرسر کړه و ویې ویل، چې ګټه په غنمو پرې کړی شي، تر څو دا اصل چې پیسې ماشوم نه زېږوي، غلط نه شي، ولې چې غنم د پیسو برخلاف کولای شي، بور ورکړي او ډېر شي. ویې ویل، پور ورکوونکی له دې کبله ګټه اخلي، چې ځان او خپلې پیسې په خطر کې اچوي.

**صنعتي پانګه والي:** آیا د دې سوداګریزې پانګه والۍ په څنګ کې صنعتي پانګه والۍ هم شتون لاره؟

د پخوانیو صنایعو په منځ کې یو صنعت ؤ، چې د افزارونو او تشکیلاتو په وجه یې د پانګه والۍ بڼه لرله او هغه د ټوکر اوبدلو صنعت ؤ. کله چې په تدریج سره تجارتي فعالیت ډېر شو او بازارونو پراختیا موندله او د ټوکراوبدونکو سیالي په خپلو کې کلکه شوه، د ټوکراوبدلو کارخانو پانګه والۍ بڼه هم زیاته شوه. نور دې کارخانو باید د هغو ګاکانو

اړتیاوې پوره کړې وای، چې د دوی د اړتیاوو اندازه د پخوا په شان له وړاندې معلومه نه وه او له دې کبله هغه پخوانۍ قاعدې د ستونزو لامل ګرځېدلې. د صنایعو خاوندان د دې لپاره، چې له د غو مقرراتو څخه، چې په ښارونو کې رامنځ ته شوي وو، وتښتي، په هغه تدبیر، چې له ۱۳مې پېړۍ څخه پیل شو، لاس پورې کړ، یانې د کارخانو د ماهیو یوه برخه یې د ښار شا او خوا ته او هغه نه بهر یووړله. په دې توګه په کلیو کې یوه ډله رامنځ ته شوه، چې یوه نیمايي کارګر او یوه نیمايي بزګر وه، بزګر په هم هغه حال کې، چې په کرهڼیزو کارونو بوخت وو، په کارګاوو کې یې کارګري هم کوله.

د ټوکراوبدلو دا صنعت څرګنده ده، چې په یوه هېواد کې کلابنده پاتې نه شو او د هغه سوداګرۍ بهر ته هم سرایت وکړ. هر څومره چې د ټوکراوبدلو صنعت د بهر لپاره کار وکړ، لا ډېره د بحران سره مخ شوه، ولې چې د «تولید مازاد» یې ومونده. په دې مانا چې نور یې له هغه ځایه چې د ابرې کچه،

چې په بهرنیو هېوادونو کې به د اړتیا وړ وه، وړاند وینه وکړي او له هغه ځایه چې دا کچه ثابته نه وه، داسې پېښېدل، چې د کارخانو جوړې شوې ابرې بې ګاکه پاتې کېدلې او د هغو بیه ټیټه راتلله او کارخانه اړ کېدله، تر څو د هغو مصرفېدو په موکه د کالیو له چمتو کولو څخه ډډه وکړي. د بېلګې په توګه په ۱۵۲۷م کال کې، کله چې انګلستان د اسپانیې پاچا پنځم چارل سره ووهل، دا خبره لامل شوه، چې ټول پراخ بازارونه، چې د چارل ابل وو، د انګریزو سوداګرو په مخ وتړل شي. له دې کبله د انګلیس ټوکراوبدلو کارخانو خاوندانو ګاکان و نه موندل او اړ شول، د خپلو کارګرانو یو شمېر وزګار کړي او په دې توګه د خلکو د ناخوښۍ چیغې پورته شوې.

د ټوکراوبدلو صنعت تر څنګه، چې څه پخوا منځ ته راغلی ؤ، د لوکسو اشیاؤ او جنګي شیانو لپاره نوې کارګاه رامنځ ته شوه. دا صنعتونه د نوښت له امله او د ډول له امله د کارپورېشن د قانونونو له هاندونو څخه بهر وو او کېدای نشول، چې پخواني قانونونه د

هغه په وړاندې پورته کړي. دې صنعتونو باید له فني پلوه ازادي لرلای.

په دې توګه، که ونه وایو د واقعي صنعتي پانګه والۍ لپاره، لږ تر لږه د نوې سوداګریزه پانګه والۍ لپاره مساعده زمینه رامنځ ته شوه.

د چاپ صنعت رامنځ ته کېدلو هم په دې موضوع کې ژوره اغېزه لرله. جان ګوتنبرګ (په جرمني کې زیږېدلی ۱۳۹۷ – ۱۳۶۸) د چاپ صنعت، چې له ده نه پخوا منځ ته راغلی ؤ، د دوو نورو کسانو په ګډه بشپړ کړ. کله چې د چاپ صنعت بشپړ شو، د چاپ لوازم او ټکي، هغه فلزات چې د ټکو شیندلو لپاره لازم وو، د کاغذونو شتون او رنګ، چاپ شوي کتابونه او مجلې، دا ټول هغه شتمني وه، چې د زمکې په دود د پېرودلو، پلورلو او اجارې وړ ګرځېدله او د شریکانو تر منځ ویشیدله.

له هغه ځایه چې چاپخځي د ماشینونو او ادواتو سره، چې اړتیا یې لرله، ډېرو پیسو ته اړتیا لرله، دا صنعت هم د سوداګرو په لاس کې ولوېده او د هغه لپاره یې شرکتونه جوړ کړل. د کتابونو چمتو کولو،

ګودامولو او بازار ته وړلو، د دغو هر يو ځانګړو سوداګريزو سازمانونو ته اړتيا لرله.

د چاپ صنعت له امله، د کاغذ جوړولو صنعت هم له نوې وضعې سره، چې له لسمې پېړۍ څخه پيل شوې وه، پرمختګ وموندہ. د توپخانې صنايعو هم، چې له ۱۴مې پېړۍ څخه يې د باروتو د کارولو له امله دود موندلى ؤ، په دې دورکې پراختيا وموندله او د پانګې پنډېدل يې ډېر کړ.

**ټولنيزې وضعې ته بشپړه کتنه:** بيې چې په تدريج سره پورته لاړې، د کارګر مادي وضعيت لا بد شو، ولې چې د دوى مزد د بيو د لوړېدلو په اندازه پرمختګ ونکړ.

پر صنعت باندې حاکميت او امرچلول محدود شمېر خلکو ته ځانګړتيا وموندله، چې خپلې بنسټګڼې يې په ارث پرېښودلې. ټولنيز واټن د کارګر او ارباب تر منځ په کارګاوو کې ډېر شو، ولې چې د ښوونکي پوړۍ ته رسېدل ورځ په ورځ لا درون، لا ګران او لا ستونزمن کېدلو او کارګران د ښار د چارو له ادارې

څخه لېرې کېدل. په دې توګه د پرولتاريا طبقه منځ ته راغله او د اريستوکراسۍ د تمايلاتو پر ضد متشکله شوه او د پاڅون بنسټ يې کېښود. د بېلګې په توګه په ۱۵۳۹م کال کې د ليون په ښار کې په يوه صنعت کې، چې له ټولو صنايعو «لاکاپيټاليسته» ؤ، يانې د چاپ په صنعت کې يو معروف اعتصاب پېښ شو، چې د پاريس صنايعو ته يې هم سرايت وکړ او د هغه نيونو او بندي کونو تر ۱۵۷۱ کاله پورې پايښه موندله. د پاچا ځواک نه يوازې په بشپړه بې رحمۍ سره په دې اعتصابونو کې لاسوهنه وکړه، بلکه موکه يې غنيمت وشمېرله، د کارګرانو هر ډول غونډېدل يې له کوچنيو نېولې تر لويو پورې د ۱۵۳۹ فرمان له امله ممنوع کړل.

په همدې ۱۵۳۹ کال کې په بشپړه توګه ځانګړې کېږي، چې پانګه والي وروسته له دې چې د سوداګرې په برخه کې رامنځ ته شوه، هغه يې کوله، چې د کار بازار هم تسخير کړي. په همدې دور کې پرولتر، يانې هغه کارګران چې د افزارو خاوندان

کېدلای نشول، منځ ته راغلل او له پانګه والې طبقې سره په مبارزې بوختېږي.

خو د کرهنې پرمختګ د صنعت په خلاف ټولو ځایونو کې په یوه ډول پلی نشو. په فرانسې کې له هغه ځایه چې د کارخانو لپاره ورځ په ورځ د «لاس» اړتیا ډېرېدله، د سرفانو ازادول لا ډېر پلي شول، د بېلګې په توګه لمړي فرانسوا په کال ۱۵۴۴م کې د خپلې سیمې سرفان ازاد کړل او سینیورانو ته یې توصیه وکړه، چې خپل سرفان ازاد کړي.

*****

# ۲۸

## د صنايعو لنډ تاريخ

**د افزارو بدلون ماشين ته:** هم هغسې مو چې پخوا څرګنده کړه، له ۱۲مې پېړۍ څخه وروسته سوداګرۍ او صنعت په اروپاکې رونق وموندلو او په تدريج سره يې د پانګه والۍ سيستم لپاره زمينه منځ ته راوړه. خو ياد شوي سيستم تر ۱۸مې پېړۍ پورې، چې لوی صنعتي انقلاب رامنځ ته شو، لا ډېره سوداګريزه بڼه لرله. دا دی د دې لپاره چې په صنعتي انقلاب ښه پوه شو، بايد وګورو، چې د توليد ساده افزارو تر منځ څه توپير شتون لري. البته د دې دواړو تر منځ جوته کرښه وېستلې نشو، خو په بشپړه توګه د دوی د توپير وجه بيانولای شو:

ځيني وايي، افزار له ساده ماشين او ماشين له مرکبو افزارو څخه عبارت دی – د هغو په نظر د افزار او ماشين تر منځ بنسټيز توپير شتون نلري کونډی (اهرم) هم د ماشين يو ډول شمېرل کېږي.

دا لید د اقتصاد له پلوه کوم ارزښت نلري، ولې چې تاریخي لامل ته یې په هغه کې تراو ندی ورکړی.

ځیني نور وایي، د افزار او ماشین توپیر په دې کې دی، چې افزار د انسان د ځواک په وسیلې کار کوي، خو ماشین د طبیعي ځواک په وسیلې د بشر له ځواکه پرته او د بېلګې په توګه د حیوان، اوبو یا باد د ځواک په وسیلې څرخېږي. د دې باور پر بنسټ، آس ګاډی، چې په بېلابېلو اقتصادی دورونو کې یې شتون لرلو، ماشین دی، خو یوه کارګاه، چې د یوه انسان په لاس څرخېږي، خو بشپړه ابره لري، افزار دی او که هماغه کارګاه د حیوان په وسیلې په خوځښت راشي، ماشین دی.

د دې لپاره چې د ماشین او افزار په توپیر سم پوه شو، باید لاندې بنسټیزه موضوع په نظر کې ونیسو.

هر پرمختللی میکانیسم له درو برخو څخه جوړ شوی: موتور، د نقالې برخه، «ماشین – افزار».

موتـور د خوځـوونکي ځـواک پـه توګـه دی. دا خوځوونکی ځواک یا پخپلـه موتـور تولیـدوي، لکـه د بخار ماشین او یا له یوه طبیعی ځواک څخـه، چې د هغه نه بهر شتون لـري، سـرچینه اخلي، لکـه د اوبـو لویدل یا د باد چلېدل، چې ژرنده ګرځوي.

د نقالي برخـه هغـه برخـه ده، چې خوځښـت تـه نظم ورکوي او د هغه شکل تـه پـه لازمې مـوکې کې توپیر ورکوي او د هغه حرکت «ماشـین – افـزار» تـه رسوي.

خو «ماشین – افزار» پـه حقیقـت کې د هماغـه دستګاوو او افزارونـو څخـه عبـارت دی، چې پخـوا د کارګر او کسبي په لاس کې ؤ، په دې توپیر سره، چې نن یادشوې دستګاوې او افزارونه د یوه میکانیزم پـه لاس کې دي.

«ماشین – افزار» هغه دستګاه ده، چې وروسـته له هغه چې هغه ته لازم خوځښت ورکړ شو، هغه کار کوي، چې پخوا کارګر پـه هغـه تـه ورتـه افـزارو سـرته رساوه.

د ماشین او افزار تر منځ توپیر دا دی، چې یاد شوې دستګاه د کارګر له لاسه د میکانیزم لاس ته ورکول کېږي او مازې دا چې دا عمل سر ته ورسېده، په تولید کې جوت توپیر څرګندېږي، که څه هم د هغه میکانیزم د خوځښت ځواک په خپله انسان وي.

د خوځښت ځواک هر څه چې وي، تر څو چې «ماشین افزارِ» منځ ته رانشي، په صنعت کې لوی بدلون راتلای نشي، د بېلګې په توګه د مانوفکتور (لاسي صنایعو) څخه خورا مخکې د ماشین خوځوونکی ځواک رامنځ ته شوی ؤ، خو په صنعت کې یې کوم انقلاب رامنځ ته نکړ او ان د بخار ماشین، چې د ۱۷مې پېړۍ په پای کې اختراع شو، د ۱۸مې پېړۍ تر پایه یې خپل پخپله ونکولای شول صنعت منقلب کړي او یوازې د «ماشین – افزار» اختراع وه، چې د بخار ماشین یې بشپړ کړ او د ګټې پورته کولو وړ وګرځاوه. ښکاره ده، چې خوځوونکی ځواک په خپل ځای خورا اهمیت لري او پرته له هغه هم صنعتي انقلاب د بشپړېدو درجې ته نه

رسېږي، خو باید په پام کې ونیسو، چې د صنعتي انقلاب اصلي لامل د کار د افزارو په میکانیزه کېدو کې دی، په دې کې چې د کار افزار په ماشین باندې بدل کړي. دا انقلاب په ۱۸مې پېړۍ کې پېښ شوی دی.

موږ د دې لپاره چې د صنعتونو بدلون او د هغو انتقال اروپا ته، چې د فیوډالي دور د بدلون او د پانګه والۍ د رامنځ ته کېدو لامل شو، ښکاره کړو او هغه څه مو چې په تېرو څپرکو کې بیان کړل، لا مجسم کړو، د مهمو صنایعو یو لنډ تاریخ یادوو.

**تارسکنل او ټوکراوبدل:** د تارسکنلو فن د بشري فنونو تر ټولو پخوانی فن دی او د ټولنو له رامنځ ته کېدو سره پیل کېږي.

نټک (دوک) د دې فن تر ټولو پخوانی افزار دی، چې په ټولو ولسونوکې دود اوسېدلی دی. یوازې په ۱۶مې او د ځینو په خبره په ۱۷مې پېړۍ کې وو، چې د تار تاوولو څرخ اختراع شو، چې په پښو یې حرکت کاوه.

د اتلسمې پېړۍ په پیل کې لا تارسکنې د کلیوالو ښځو یوه بوختیا وه، چې په نتهک او یا د تارسکنېلو په څرخ سره په دې کار اخته کېدلې.

په دې موکې کې وو، چې میکانیکي تارسکنې لمړی ځل په انګلستان کې رامنځ ته شول. د اتلسمې پېړۍ په منځ کې په انګلستان کې د هغه زیاتې اړتیا له امله چې ټوکر او تار لپاره رامنځ ته شوه، د داسې ماشین د اختراع په لټه کې شول، چې وکولای شي د څو کسو کارګرانو په کچه ابره تولید کړي. د همدې پېړۍ په پای کې د تارسکنېلو ماشین، چې په ډېر ځواک سره یې حرکت کړی وای، اختراع شو.

د ټوکراوبدلو صنعت میکانیزه کول هم د اتلسمې پېړۍ په پای کې پلي شول. د دې خبرې فکر لمړی په فرانسې کې په ۱۷۶۸م کال کې رامنځ ته شو، خو لمړیو کسانو، چې هغه یې عملي کړ، انګریزان وو.

**ماهوت (کشمیرې) جوړول:** د پسونو وړیو څخه ګټه پورته کول د لمړي ځل لپاره په شپنو قبیلو کې پلي شول او په تدریج سره یې د ماهوت

جوړولو صنعت منځ ته راوړ، چې د روم امپراطورۍ په زمانه کې یې خورا رونق وموند.

وروسته له دې چې جرمنانو په روم یرغل وکړ، د ماهوت جوړولو صنعت هم د نورو صنایعو په دود مخ په انحطاط شو او یوازې وروسته له ۱۳مې پېړۍ ؤ، چې په هالنډ او بلژیک کې د دې صنعت په بېرته راژوندي کېدو پیل وشو. هالنډیانو او بلژیکیانو د ماهوت جوړولو لپاره د فرانسې، انګلستان، اسپانیې او جرمني له وړیو ګټه پورته کوله او نږدې تر ۱۵مې پېړۍ پورې یې د دې صنعت انحصار لرلو. خو انګرېزان ژر پام شول او د وړیو صدور یې له انګلستان څخه منعه کړ او د هالنډي او بلژیکي کارپوهو په مرسته یې په خپل هېواد کې د ماهوت جوړولو فابریکې جوړې کړې.

په فرانسې کې لمړنې ګامونه چې د ماهوت جوړولو لپاره واخیسل شول، د ۱۶مې پېړۍ په دوهمې نیمایې کې وو، خو بنسټیز ګامونه د ۱۷مې پېړۍ په منځ کې د څوارلسم لویي وزیر، «کلبر»، په زمانې کې پورته شول.

**ښیښې جوړول:** ورسته له هغه چې د روم امپراطوري راوپرځېده، ښیښې جوړول هم مخ په پرېوتو شول او یوازې د فرانسې او ایټالیا په ځینو ښارونو کې یې معمولې ښیښې جوړولې. خو وروسته له څه مودې دا صنعت په انګلستان کې هم خپور شو.

لوکسه ښیښې یوازې په اسپانیې کې د عربو لخوا او په ختیز کې د یونانیانو لخوا جوړېدې او تر ۱۳مې پېړۍ پورې همدا ولسونه وو، چې د اروپا د اړتیا وړ ښیښې یې چمتو کولې.

لمړی ځل د ونیز اوسېدونکو په ۱۳مې پېړۍ کې وکولای شول لوکسه ښیښې جوړول په لویدیزې اروپاکې هم دود کړي او په ۱۴مې پېړۍ کې یې دا صنعت پایلیز رونق ته ورساوه. ورو ورو نورو ولسونو له دوی سره سیالي پیل کړه او د ۱۷مې پېړۍ په پای کې په فرانسې، انګلستان او جرمني کې د ښیښې جوړولو لویې فابریکې جوړې شوې او په دې فن کې نوي اختراعات پلي شول.

**کاغذ جوړول:** پخوانیو مصریانو د لیکلو لپاره د پاپیروس بوټو له پاڼو څخه ګټه اخیستله. د پاپیروس

څخه ګټه پورته کولو ورو ورو ګاونډیو سیمو ته سرایت وکړ او له زیږیز څخه وړاندې پنځمې پېړۍ کې اروپا ته ورسېده.

له پنځمې زیږیزې پېړۍ څخه راهیسې، چې د پارشمن کاغذ دود شو، د پاپیروس رونق لږ شو او د هغه له کارولو څخه اصولن له ۱۲مې پېړۍ وروسته په فرانسې او د اروپا په نورو هېوادونو کې لاس واخیستل شو.

د پارشمن کاغذ د پسه، خوسي، مېږې او وزې له پوټکو جوړېده او د هغه اختراع ډېره پخوانۍ ده، خو د هغه ظریف صنعت تاریخ باید دوې پېړې مخکې له زیږیزه وګڼو. له پارشمن څخه ګټه پورته کول ژر په بېلابېلو هېوادونو کې دود شول او د منځنیو پېړیو په دور کې هم د نوي کاغذ تر دودېدلو پورې معمول وو او ان د هغه له دودېدو وروسته هم تر څو پېړیو پورې د ګټې اخیستلو وړ ګرځېده.

خو کاغذ د نن ورځې په سبک په لمړي سر کې له مالوچو جوړېده او د هغه مخترع چینایان وو، چې دوې پېړۍ مخکې له زیږیز نه د هغه په اختراع بریالي شول. په ۸مې پېړۍ کې چې عرب په بخارا

برلاسي شول، د بخارا په کتابتون کې دې ډول کاغذ سره مخ شول او هغه يې په لويديزې ايشيا کې دود کړ. ياد شوى کاغذ يوه پېړۍ وروسته، يانې په ۹مې پېړۍ کې اروپا ته هم ورسېده.

د زړو او ټوټو څخه د کاغذ جوړول سم څرګند نه دي، چې په کوم تاريخ کې اختراع شوي، خو د هغه بشپړېدل په ۱۲مې پېړۍ کې پلې شوي او په همدې پېړۍ کې وو، چې د کاغذ جوړولو دستګاوې په اروپا کې ترسره شوې.

د کاغذ جوړولو کړنې په لمړي سر کې په لاس او په وړو افزارو سره پلې کېدلې. د دې صنعت ميکانيزه کول د اولسمې پېړې (۱۶۹۹) په پاى کې د فرانسې په توسي کې اختراع شول، خو انګرېزانو له نورو څخه ژر وکولاى شول دا اختراع پلې کړي.

**شکرې جوړول:** هغه شکره چې عمومن په صنعت کې پېرودل او پلورل کېږي او «تجارتي شکره» نوميږي، د هغې اصل له ګني يا چوغندر څخه اخلي او وروسته له تصفيې څخه يې د تجارتي شکرې په ډول راګرځوي.

**۱ – د ګني شکره:** د سهېلي ایشیا په سیمو کې ډېره ده او شکرې جوړولو له هماغه سیمې څخه ولې اخیستې ده.

د لوی سکندر له وخته یونانیانو له هندوستان څخه شکره واردوله، خو کچه یې هومره لږه وه، چې عومن له درملتونونو څخه پېرودل کېدله.

د روم امپراطورۍ په زمانه کې یې شکره له هندوستان او عربستان څخه راوړله او په لویدیزې اروپا کې یوازې وروسته له سلیبي جنګونو وو، چې شکرې جوړول ډېر شول.

له ۱۳مې پېړۍ څخه وروسته، چې د اروپا سوداګري مخ په رونق شوه، د ګنیو کشف په سوریې، مصر او د مدیترانې په عمده جزایرو کې دود شو او د اسپانویانو په لاس د امریکې زمکو ته یې هم سرایت وکړ. برسېره پر دې په څوارلسمې پېړۍ کې تصفیه شوې شکره په اوروپا کې لږه وه.

د ۱۶مې پېړۍ په لمړنیو کلونو کې د شکرې جوړولو صنعت په امریکا کې په پښو شو او تر مودو پورې د امریکې شکره د اسپانویانو په لاس د اروپا هېوادونو ته رسېدله. په ۱۷مې پېړۍ کې د امریکا

شکره په پرېمانه کچه ارو پا ته راورسېده، چې ډېرې اړتیاوې یې لېرې کولې او له هغه ځایه چې په دې دور کې یې د اروپا نورو مستعمراتو کې هم د شکرې په چمتو کولو پیل وکړ، د هغې پرېماني خورا ډېره شوه او بیه یې خورا ښکته راغله.

**۲- د چوغندرو شکره:** د شکرې کشف په چوغندر کې لمړی ځل د یوه جرمني کیمیاپوه لخوا د اتلسمې پېړۍ په دوهمې نیمایې کې پلی شو، خو هغه وخت عملن د ګټې پورته کولو وړ وګرځېده، چې له امریکې سره جګړه پېښه شوه او د امریکې شکره اروپا ته ونرسېده، هغه وخت په لټه شول او یاد شوی کشف د پام وړ وګرځېده او د نونسمې پېړی په لمړۍ نیمایې کې په فرانسې او د اروپا په نورو ټکو کې د چوغندرو کرنه او د شکرې جوړولو مهمو کارخونو بنسټ ایښودل پیل شول.

**د چاپ صنعت:** تر ۱۵مې پېړۍ پورې ټول کتابونه په لاس لیکل کېدل. د چاپ صنعت د یاد شوې پېړۍ په منځ کې اختراع شو.

**فلزات:** فلزات له خورا ډېرې پخوانۍ زمانې څخه د بشر د پام وړ ګرځېدلي بښکاره ده، چې بشر په لمړي سر کې هغه فلزات وپېژندل، چې په سپېڅلې توګه په طبیعت کې موندل کېږي، لکه سره او سپین زر – وروسته د هغو فلزاتو په کشف بریالی شو، چې هغه کېدای شي له نورو توکو جلا کړو، لکه مس، قلعي او نور. یوازې په ۹مې پېړۍ کې وو، چې د هغه اسیدونو کشف نښې وموندلې شوې، چې وکولای شي، فلزات په ځان کې حل کړي او د هغو د سپېڅلتیا لامل شي او له ۱۵مې پېړۍ وروسته د فلزاتو شمېر ورځ په ورځ ډېر شو.

**معدنونه:** پخوا یې یوازې مریان په معدنونو کې کار ته اړباسل، ولې چې د معدن کار خورا ګران ؤ او غالبن د مریه په مرګ پای ته رسېده. په هغه موکه کې یې په دیلم سره په معدن کې سوری ایستلو او د اړتیا په اړوندونو کې یې د معدن ټوټې تودولې، د هغو په سر یې سرکه شېندله، تر څو هغه چاودې کړي. په منځنیو پېړیو کې نه یوازې د معدنونو پر

اېستلو څه زيات نشول، بلکه اصولن ځينې معدنونه وځنډول شول. يوازې د ۱۷مې پېړۍ سر کې وو، چې د نويو ابتکارونو له امله د معدنونو لپاره نوی وضعيت رامنځ ته شو او په چټکيا سره يې د هغو په اېستلو پيل وکړ.

**د بخار ماشين:** د بخار ماشين د بشري هنر له اثرونو څخه يو دی، چې د صنعت به وده کې يې تر ټولو لويې اغېزې لرلې.

پېړۍ کېدې، چې بشر د بخار ځواک پېژانده، خو لمړي کس، چې له دې ځواک څخه يې ګټه پورته کول کشف کړل، فرانسوی دني پاپن ؤ، چې د ۱۷مې پېړۍ په دوهمې نيمايې کې يې ژوند کاوه. د دني پاپن کشف په هماغه پېړۍ کې پلی شو او په صنعت کې د لويو بدلونونو لامل وګرځېده.

*****

## ۲۹

## د ۱۷مې پېړۍ ځانګړتیاوې

**ګمرکی سازمان:** د فرانسې ګمرکی سازمان هغه شان ؤ، چې د سوداګریزو سمو آمارو ځای پر ځای کېدل یې ستونزمن کول. د فرانسې خاوره نظر هغه ویش ته، چې پخوا یې لرلو، ځلور برخې شوې وه او د هرې برخې د ادارې ډول یې له بلې برخې سره توپیر درلوده.

۱ – د پنځو ولایتونو ګېرچاپېره یې یو پوستې او ګمرکې خط ابستلی ؤ او د سوداګرو له هغو مالونو څخه یې، چې د دوی حدودو ته ننوتل او یا له هغو نه وتل، ګمرک اخیستلو، خو د کالیو حمل او نقل په دې پنځو ولایتونو کې دننه ګمرک نلرولو او یوازې د لارساتلو حقونه له دوی څخه اخیستل کېدل.

۲ – ځینې نور ولایتونه یې بهرنې ولایتونه نومول. په دې ولایتونو کې غالبن د لارساتلو پخواني حقونه او په همدې توګه داخلې تعرفې، چې حمل او

نقل ته ستونزمنې وې، اخيستل کېدې او هر کالی، چې له دې ولايتونو څخه ياد شوو پنځګونو ولايتونو ته صادرېدو او يا له هغو ولايتونو څخه راوارېدېدو، د ګمرک حق يې پرې کولو.

۳ – يوه بله ډله هغه ولايتونه وو، چې له فرانسې نه بهر يې کولای شول په ازاده توګه سوداګري وکړي، خو په هغه موکه کې، چې خپل کالي يې د فرانسې له نورو ولايتونه څخه تېرول، بايد ګمرکي حقونه يې پرې کړي وای.

۴ – پنځه ازاد بندرونه هم وو، چې له بهر سره يې په ازاده توګه سوداګري کوله او د هغو سوداګريز مال يوازې هغه وخت ترکنترول لاندې راتللو، چې د دوی له ازادې زمکې څخه بهر وتلو.

لمړی ځل د ۱۵م لويي په زمانه کې د دې ويش، چې د ازادې سوداګری خنډ ګرځېده، د لغو کولو په هڅه کې شول؛ د ۱۴م لويي وزيرانو هم په دې لار کې ډېرې هڅې وکړې، خو له هغه ځايه چې دا ويشونه د فيوډالي دور د غوښتنو له امله او د

سینیورانو د ګټو پر بنسټ منځ ته راغلي وو، یاد شوو هڅو اغېزمنه پایله ونه موندله.

**د لارساتلو حقوق او نور سینیوري عوارض:** په تېرو څپرکو کې مو وویل، چې د رومیانو په زمانه کې د لارساتلو حقوق د واټونو د جوړولو لپاره اخیستل کېدل. په فیوډالي دور کې د لارساتلو د حقوقو اخیستل پاتې شول، خو د مصرف موخه یې له منځه ولاړه، په دې مانا چې سینیورانو هر یوه په خپله سیمه کې د لارساتلو حقوق اخیستل، خو د دې پر ځای چې هغه له واټونو څخه پاملرنې په موخه وکاروي، د خپل تجمل لپاره یې لګول. د فرانسې پاچایان څو ځله په هڅه کې شول، چې د لارساتلو دا حقوق له منځه یوسي او ان څو فرمانونه یې په دې هکله صادر کړل، خو په سینیورانو بریالي نشول او دبېلګې په توګه د ۱۶مې پېړۍ په لمړۍ نیمایې کې د لوارد سیند په سر، چې د فرانسې لویه مرکزي لار ګڼل کېدله، لا د باج اخیستلو ۱۲۰،۱۰۰ مرکزونو شتون لاره او د ببلګې په توګه د مالګې یوې ببړۍ،

چې له «نانت» څخه «لور» ته تلله، باید د خپل ارزښت ځلور څله یې د لارساتلو د حقوقو په نامه پرې کړې وای.

د فرانسې پاچایانو د دې لپاره چې د سینیورانو له عوارضو څخه یې مخنیوی کړی وي، اصولن په دې لټه کې شول، چې ځینې ښارونه له سینیورانو څخه وپېرودي، په دې اړوندونو کې سینیورانو هومره لوړې پیسې غوښتلې، چې غالبن د پاچا خزانې د هغو د پرې کولو وس نه لرلو، لکه څنګه چې د سینیورانو څخه یوه یوازې د یوه ښار لپاره ۶۰،۰۰۰ لیوره غوښتل.

د فرانسې پاچایانو د دې لپاره چې هغه هېواد ته اقتصادي یوالی ورکړي، د ۱۷مې پېړی له پیله د څو ګامونو د اوچتولو په لټه کې شول:

۱ – د سوداګریزو اړیکو اسانول په دې توګه، چې داخلي بندونه، چې د فیوډالي رژیم پاتې شوني وو او فرانسه یې ویشله، له منځه یووړي.

۲ – د ملي صنايعو ملاتړ په دې توګه، چې د فرانسې په سرحدونو کې بندونه جوړ کړي او له بهرنۍ سيالۍ څخه مخنيوی وکړي.

۳ – د هېواد د سرو او سپينو زرو ډېرول په دې توګه، چې د صادراتو کچه د وارداتو له کچې څخه پورته بوځي.

خو په لمړۍ برخه کې يې ډېرې برياوې ونه موندلې او سره د دې چې کلبر د ۱۴م لويي وزير ډېر داخلي ګمرکونه او د لارساتلو حقوق يې له منځه يوووړل، خو له ده څخه وروسته لويو خانانو د ده مقررات، چې د ځان په ضرر يې تشخيصول، له منځه يوووړل.

**د خلکو او د دوی له بدمرغيو څخه يوه وړه احصايه:** د دې په پاملرنې سره چې د صنعت او سوداګرۍ پرمختګ لامل کېده، چې د هېوادونو سياسي سازمان ته تمرکز ورکړی شي، د اروپا دولتونه تمرکز ته نږدې کېدل او د خپل ملي اقتصاد پراختيا لپاره د تازه بازارونو نېولو او نويو سرحدونو ټاکلو ته اړ وو. له دې کبله پرله پسې او خونړې

جګړې د فرانسې، جرمني، اسپانیې او نورو ترمنځ پېښې شوې. د دې جګړو لګښتونه پر بېوزلې پرګنې تحمیلېدل او د هغو تلفات هم بېوزلې پرګنې وې. غیر قانوني تحمیلونه او نور عوارض هم چې سینیورانو اخیستل، پر دغو ورزیاتېدل. د سرفانو ازادېدل، چې د کارخونو په هېله آواره کېدل او په لارو کې یې په سوال غوښتلو او لاروهلو لاس پورې کولو، پر لاملونو ورډېرېده. دې ټولو لاملونو لاس سره ورکړ، یو بېوزلی ولس یې منځ ته راوړ، چې د ۱۷مې پېړۍ په دوهمه نیمایې کې یې ۸۰۵،۳۱ کسه سوالګر لرل.

د دې لپاره چې څرګند شي، چې د دولت مالیې د لویې په زمانه کې څومره ملاماتوونکي شوې وې، یادونه کوو، چې د دولت لګښتونه، چې په ۱۷۰۰م کال کې تر ۱۱۶ میلیونو ډېر وو، په ۱۷۱۱م کې له ۱۶۴ میلیونو لېرو ډېر شول، یانې له دوه ځلو زیات شول.

پر نورو بدمرغیو برسېره په ۱۷۱۵م کال کې په ځناورو کې یو طاعون هم خپور شو، چې خورا درانه تلفات یې رامنځ ته کړل.

دا ټولې بلاګانې لامل شوې، چې د هېواد نفوس خورا لږ شو او هسې چې لیکلي یې دي، د فرانسې ولس له ۱۷۰۰م څخه تر ۱۷۰۷م پورې له ۴۰۰ زرو څخه تر ۵۰۰ زرو پورې تلفات ورکړل او د ده تلفات باید له یاد شوي تاریخ څخه تر ۱۷۱۵م پورې په بنسټیزه توګه تر دې څخه خورا ډېر وي.

*****

## ۳۰

## د ۱۸مې پېړۍ له ځانګړتیاوو څخه

**د لارساتلو حقوق او بېګار:** ۱۴م لویي د خپل سلطنت په وروستي کال کې د واټونو د ساتلو او رغونو لپاره یو فرمان صادر کړ او د هغو ساتل یې لویو خانانو ته ورپه غاړه کړ، خو عمومي بېوزلۍ اجازه ورنکړه، چې دا نقشه پلې شي. د ۱۵م لویي په زمانه کې یې دا کار د بېګار له لارې سرته ورسولو. هغه کسانو چې له واټونو څخه تر ټولو ډېره ګټه پورته کوله، سوداګر وو، چې غوښتل یې خپل کالي حمل او نقل کړي او له دې کبله په بنسټیزه توګه باید د واټونو لګښتونه د دوی لخوا پرې شي، خو د هغې زمانې د حاکمې ډلې زوورویلو حکم کولو، چې دا بار هم د بېوزلو خلکو په مټ کېښودل شي.

بېګار یوازې په مالیې ورکوونکو کسانو، چې له ۱۶ څخه یې تر ۶۰ کلونو پورې عمر لرلو او په نا

ازادو ښارونو او یا په کلیو کې اوسېدل، تحمیلېده. د کلیسا غړي، اسیلان، د هغو چوپړ، د ازادو ښارونو بورژواګان، هغه کسان، چې په کوم نوم سره یې د ښار له حاکم سره تړاو لرلو، له بېګار څخه بخښل شوي وو. د بېګارۍ موده په کال کې ۳۰ ورځې وه. بېګار ورکوونکو باید د کار افزارونه، بار وړونکي څناور او خپلې ګاډې او په حقیقت کې خپل ټول شته له ځانه سره راوړي. له دې څخه اټکل وکړی، چې څومره فشار په دوی راتللو او څنګه بې کوره او اوره کېدل. د زور زیاتي کار هغه ځای ته ورسېدو، چې بورژواګانو د ښار سړکونو جوړولو لپاره هم له کلیوالو څخه ګټه پورته کوله.

له هغه ځایه چې مامورینو حق لرلو، چې که کار د موکې په سر پای ته ونه رسېږي، هغه د هغو پیسو په وسیله، چې له څنډ راتلونکو څخه یې اخیستلې، سر ته ورسوي. ورو ورو یاد شوي بېګار د مالیې بڼه ځان ته ونیوله، چې پر مالیه ورکوونکو تحمیلېدله.

دا بېګار په ۱۷۷۶م کال کې له منځه لاړو او د هغه پر ځای د مالیې یوه تعرفه کېښودل شوه، چې د ځمکې ټولو خاوندانو پورې یې تړاو موندلو، خو دا تعرفه د خانانو د مخالفت له کبله هېڅکله پلې نشوه. په هغه وخت کې که څه هم د عمومي ګټو د فشار او یا نورو لاملونو له امله ځینې قانونونه د ډېرکي په ګټه وضع کېدل، له هغه ځایه چې هغه کسانو، چې هغه قانونونه د دوی په ضرر وو، د هېواد چارې یې په لاس کې لرلې، هېڅکله نه پلي کېدل او سم زموږ هېواد په شان ؤ، چې د قانونونو او د هغو د پلي کېدو تر منځ خورا ډېر توپیر شتون لري.

له دې کبله سره د دې چې کلبر د ۱۴م لویي وزیر د لارساتلو حقوق، چې د سوداګرۍ مخنیوی یې کاوه، له منځه یووړل او د هغو پر ضد نور قانونونه هم وضع شول، په هماغه توګه په خپل حال پاتې شول.

**د صنعت او سوداګرۍ د ازادۍ په لور:** کلبر د ۱۴م لویي صدراعظم د دې لپاره چې د فرانسې داخلي صنایع د بهرنیو صنایعو له سیالۍ څخه

وژغوري، ځیني مقررات وضع کړل. دا صنعتي او سوداګریز مقررات ورځ په ورځ ګرانېدل او د هغو شمېر هومره ډېر ؤ، چې هر کوچني تولید کوونکي د خپلو تکلیفونو اوحقوقو د پوهېدلو لپاره باید یو دور قانون زده کړی وای.

دولت په دې توګه غوښتل چې د لمړنیو توکو ډول او سرچېنه او په همدې توګه د توکرو د جوړولو طرز او کچه کنترول کړي او تر یوه هانده پورې د درغلیو مخنیوی وکړي. خو دا مقررات د ۱۸مې پېړۍ له صنعت سره، چې پراختیا یې موندلې وه او ځواکمن شوی ؤ او نور یې بېې نه غوښتلې، نه جوړېدل. په دې دور کې هرې کارګاه غوښتل، چې د بلې کارګاه ابره هم تولیده کړي، خو هغې بلې ته یې نه غوښتل اجازه ورکړي، چې د دې د انحصاري ابرې په تولید بوخت شي. په دې دور کې د خلکو په پام کې عجیبه ښکارېده، چې داسې بندونه د سوداګرۍ او صنعت په لاس او پښو وتړي.

له دې کبله ځینو د دې محدودیتونو پر ضد ګامونه اوچت کړل او په صنعت کې د «ملاتړ

غوښتنې» سیستم یې تر نېوکې لاندې ونېوه، دغه فورمول یې جوړ کړ: «پرېږدی چې وشي، پرېږدی پرېږدی».

د دې لپاره چې موضوع سمه روښانه شي، د صنعت او سوداګرۍ ځینې محدودیتونه په ۱۸مې پېړۍ کې یادوو:

د سوداګریزو بازارونو شمېر محدود ؤ او د هغو زیاتول د مقرراتو پر ضد وو او یوازې ځیني کالي باید هلته پلورل شوي وای. هر فرانسوي بندر ځانګړتیاوې او باندېوالتیاوې لرلې، په دې مانا چې ځانګړي کالي ورله وارېدېدل او ځانګړي کالي ورڅخه صادرېدل، د بېلګې په توګه د ځینو هېوادونو شراب باید هرومرو **بردو** ته وارد شوي وای. هغه شرابونه چې مستعمراتو ته تلل، باید هرورمرو په «بردو» یا «نانت» کې په بېړیو کې اېښودل شوي وای. د فرانسې سوداګریزې اړیکې له ختیز سره باید د مارسي بندر له لارې پلې شوې وای... او داسې نور. څو کمپنیو هم دځینو هېوادونو لکه هندوستان سوداګري ځانونو ته ځانګړې کړې وه او دا خبره د

بورژواګانو د کلک اعتراض وړ وه او په پای کې یې د هند کمپنۍ باندېوالتیاوې په ۱۷۶۹م کال کې له منځه یوووړې.

ګوری، چې د هغه انقلاب له امله چې په صنعت او تجارت کې منځ ته راغلی ؤ، نور هغه پخوانیو مقرراتو سمون نه لرلو. اوس غوښتنه وه، چې صنعت او تجارت ډګر وموندي، سیالي د نړۍ ټولو سیمو ته یوسي او ځانونه ګواکې د «مریه توب» له بنده خلاص کړي. اوس وضعیت ایجابول، چې صنعت او سوداګري «ازاده» واوسي.

**ټولنیزې طبقې:** د فرانسې ولس په ۱۷مې او ۱۸مې پېړۍ کې هم نږدې د فیوډالي دور همغه ټولنیز سازمان ساتلی ؤ.

د صنعت او سوداګرۍ د رونق له امله د بورژوا طبقه منځ ته راغله او د اقتصاد له پلوه یې خورا اهمیت لرلو. خو دې اقتصادي اهمیت ده ته لا ټولنیز پوړ ورکړی نه ؤ، یانې دا چې دی د یوې ځانګړې طبقې په توګه وپېژني. د فرانسې ولس په ۱۸مې پېړۍ کې په درو طبقو ویشل کېدلو:

**۱- روحانيان:** دغه کسان، چې کار يې يوازې دعا لوستل وو، د دې لپاره چې هم د مادي نفوذ او هم د معنوي نفوذ خاوندان وو، تر ټولو ځواکمنه طبقه ګڼل کېدله.

د روحانيانو طبقې پرېمانه زمکې او موقوفات لرل، چې د فرانسې ټولو زمکو يو په پنځمه برخه يې جوړوله او د دوی عوايد له سل ميليونو ليورو تېرېدل. برسېره پر دې د خلکو له ځمکو يې عشريه هم اخيستله، چې د هغو کچه هم له سلو ميليونو ليورو تېرې کولو، هسې چې د دې طبقې کلني عوايد له ۳۰۰ ميليونو ليورو په کال کې (په ۱۷مې پېړۍ کې) تېرېدل.

پخپله د روحانيانو په منځ کې هم طبقه بندې پلې شوې وې او دا عوايد په حقيقت کې ټول د لويوو روحانيانو په مرۍ کې ورتويېدل او واړه روحانيان هومره بېوزلي وو، چې د فرانسې په انقلاب کې ځيني له انقلاب سره هملاسي شول.

د روحانيانو طبقې تل دو کسه د خپلو استاذو په توګه ټاکل او هغو دوو کسانو د پاچا سره د وزيرانو

حکم لرلو او په دولتي چارو کې يې مداخله کوله. نو وينو، چې روحانيانو له لويانو او اسيلانو سره هيڅ توپير نلرولو، پرته له دې چې روحاني نفوذ يې لرلو.

غالبن ماليو او عوارضو دې دوو طبقو پورې اړه نه لرله.

**۲- اسيلان (نجبا):** دوی هماغه پخواني سينيوران او شاهزويان وو، چې لويې زمکې يې په لاس کې لرلې او له هغو څخه يې ګذاره کوله او د ماليو له پرې کولو بخښلي ګڼل کېدل.

د بورژوا طبقې رامنځ ته کېدل او د صنعت او سوداګرۍ پراختيا اړتيا رامنځ ته کوله، چې د دې طبقې ځواک لربنت وومي. خو دغو مقاومت کولو او خپلې ګټې يې د چاپېريال پر غوبستنو تحميلولې، د بېلګې په توګه لا يې د لارساتلو حقوق او ځانګړي عوارض اخيستل او پر رعيتونو يې بېګار تحميلولو.

دغو هېڅ کار نلرلو او له هغه ځايه چې صنعت او سوداګري د فيوډالي دور د نظرياتو پر بنسټ سپک ګڼل کېدل، نو کولای يې نشول، چې په صنعت او سوداګرۍ بوخت شي او که بوخت شوي وای، د

دوی اسیلتیا له منځه تلله. خو په بدل کې دولتي مهمې چارې لکه د پوځ قومانده، وزارت، سفارت، حکومت او داسې نور د دوی برخه لیک وو. ځواکمن اسیلان ان د پاچا تر امر لاندې نه راتلل او لکه چې ومو لیدل، دولتي مقررات یې په هیڅ نیول او د دوی د پاچا سره د اختلاف کار هغه ځای ته ورسېده، چې ۱۴م لویي اړ شو، چې له دوی سره جدن په جګړه لاس پورې کړي او د دوی ۳۵۰ کسه ووژني.

**۳ – دریمه طبقه:** دریمه طبقه د خلکو پرګنو ته ویل کېدل، یانې هر څوک چې د اسیلانو او روحانیانو په ډله کې نه وو او هر چا چې کار کاوه.

په هماغه ډول مو چې ویلي دي، د صنعت او سوداګرۍ تر رونق موندلو وروسته د کارخونو لرونکو او سوداګرو څخه یوه ځواکمنه طبقه منځ ته راغلې وه، چې په ټولنه کې یې لویه اغېزه لرله او په حقیقت کې د اسیلې طبقې مخې ته پراته وو، خو ټولنه لا چمتو نه وه، هغوی په رسمیت وپېژني او په خپل سازمان کې هغو ته ځانګړی ځای قایل شي، بلکه

هغوی يې د دريمې طبقې خلکو په ډله کې او پرته له حقوقو ګڼل.

اديبان، شاعران، طبيبان، روښانفکران او د ادارو غړي عمومن د دې طبقې برخه وو، کارګران او بزګر د دريمې طبقې په ښکته برخې کې پراته وو.

ټولې ماليې او عوارض له دريمې طبقې څخه اخيستل کېدل او بزګرو چې د ټولنې ډېرکې برخه يې جوړوله، پر درنو ماليو برسېره اړ وو بېګار هم وزغمي.

په نږدې توګه ويلای شو، چې د بزګر د معمولي عايد ۷۵ په سلو کې برخه په بېلابېلو نومونو باندې د زمکې خاوند، کليسا او دولت ته پرې کېدله. خو د ياد شويو طبقو نږدې شمېر په لاندې توګه ؤ:

| | |
|---|---|
| د روحانيانو شمېر | ۱۳۰،۰۰۰ |
| د اسيلانو شمېر | ۱۴۰،۰۰۰ |
| د دريمې طبقې شمېر | ۲۵،۰۰۰،۰۰۰ |

*****

## ۳۱

## پاچا او لويان

هغه ملتونه چې د پرله پسې مودې لپاره تر فشار لاندې پېښېږي، بت پرسته روزل کېږي او په بېلابېلو نومونو لرګين خدايان جوړوي او هغو ته مخ راوړي او زارۍ کوي چې : «مور وساتی، زمور ژغورونکي واوسی ... طبيعت نارې وهي، چې بدمرغه بشره ځان پخپله وژغوره، خو د دې بشر پر سر يې دومره د ستم سوکان ټکولی، چې د هغه غور غالبن اورېدونکی نه دی.

د فرانسې په هېواد کې په ځانګړې توګه په ۱۷مې او ۱۸مې پېړۍ کې د صنعت او سوداګرۍ رونق لامل شو، چې د لويانو او اسيلانو د ژوندانه پر تجمل نور ورډېر شي او په هغه کې د مرکزيت منځ ته راتلل لامل شي، چې د پاچايانو استبداد د سينيورانو پر ستم وراضافه شي.

دا د لوېښت مانې، چې د ولس پر تېر جوړه شوې وه، هره ورځ لا لوړه او لا مجلله ګرځېدله او د ولس ساه يې لا شديده ايستله.

د ۱۴م لويي د سلطنت دور د دې لوېښت منځنی دور او د فرانسې د ولس د بدمرغۍ او شديد ساه ايستلو دور ؤ. غټ لويان او خانان په مرکز کې راټول شوي وو او د مېلمستياوو چمتو کولو، ښکار او درباري معشوقو او غوړه مالانو له راغونډولو پرته يې کوم مهم کار نه لرلو او د هېواد ټوله شتمني يې په دې بوختياوو لګوله، هسې چې دا عيشونه او معشوقو سره لوبې د جلا کتابونو موضوع ګانې ګرځېدلي دي.

مورږ د بېلګې په توګه وايو، چې مېرمن دوپمپادور د ۱۵م لويي معشوقې نږدې ۷ يا ۸ ميليونه ليوره د خپلو ماڼيو لپاره، ۴ ميليونه ليوره د تياتر او خپلو جشنونو لپاره، يو ميليون ليوره يې يوازې د خپل يوه سفر لپاره ولګول.

د دې ښځې يوه مانې، چې پاچا دې ته جوړه کړې وه، د شګو په سر جوړه شوې وه او ۱۲۰ فوټه

يې د بنسټ ايښودلو لپاره کنلي وو. د دې مانۍ جوړول ۵،۲ ميليونه ليوره تمام شول او خلکو ان تر ۶ ميليونو پورې هم ويلي.

هرې لويې کورنۍ به چې تاوان کولو او يا واده يې کولو، له پاچا څخه يې بې کچې روپۍ اخيستلې، ولې چې ويل يې، چې لويې کورنۍ د سلطنت د پت او رونق لامل دي. پاچا دا پيسې د بېلګې په توګه پلاني وزير ته حواله کولې. د حوالې خاوند وزير ته ورتللو. وزير به ويل، چې خزانه تشه ده او حق به هم له هغه سره ؤ. د حوالې خاوند ټينګار او تهديد کاوه، تر څو وزير په پای کې اړ کېدلو له هره ځايه چې کېږيی، پيسې ومومندي يا د پور ورکوونکو کشتونه (قسطونه) شا ته واچوي.

د دې بې ځايه لګښتونو او هغو پيسو له امله، چې ۱۴م لويي په جګړو کې ولګولې، کله چې دی مړ شو، دفرانسې دولت ۲ ميلیارده پوروړی ؤ او د ده ځای ناستي د شلو کلونو په ترخ کې، سره د دې چې

کوم جنګ یې ونکړ، ۷۵۰ میلیونه نور هم په دې پور ورډېر کړل.

د لویانو او پاچایانو وینو ښبنل هغې پولې ته ورسېدل، چې د خلکو په منځ کې خپاره شول، چې ۱۵م لویي د دې لپاره چې وینه یې څوانه پاتې شي، د بشر په وینو ځان پرېمبنځي او په ځانګړې توګه د ښکلو نجونو وینو ته ترجېح ورکوي. یوه ورځ، چې پولیس وزګاران راټولول، خلک د دې اند له امله غونډ شول او خوځښت یې په لار واچولو. له هغه نه وروسته ۱۵م لویي جرأت ونکړ پاریس ته راشي او په **ورسای** کې تم شي.

۱۵م لویي د ورسای د خوا او شا په ځنګلونو کې وخت تېراوه او ان خپلې مینې یې د ځنګل په سیمه کې پټولې.

د قحطۍ په یوه کال کې، چې ۱۵م لویي په دودیزه توګه په ځنګله کې په ښکار بوخت ؤ، یوه بزګر سره، چې تابوت یې په متېه نېولی ؤ، مخ شو او له هغه یې وپوښتل: «دا تابوت چېرې وړی؟» ځواب

يې ورکړ، پلاني ځای ته – سړي او که ښځې له؟
سړي له – له کومې ناروغۍ څخه مړ دی؟ له لوږې.
د ۱۵م لويي تر مړينې وروسته فرانسه په حقيقت کې د مطلقه سلطنت تابوت جوړ شوی ؤ.

*****

# ۳۲

## باستیل

د فرانسې یو لیکوال وایي، «کله چې پاچایان د بشري رزالت څخه پرته په بل څه تکیه کوي، دوی ته ګرانه ده، چې ځانونه وساتي»، ولې چې پاچایان د ولس په ارادې او خوښی تکیه نه دي، د ولس د اېل (رام) کولو لپاره پرته له زوره بله هوبله نلري او په زور باندې تکیه به یوازې د سپکو کسانو او هغه کسانو له لارې، چې سپېڅلي احساسونه یې وژل شوي وي، شونې وي. **که د مستبده پاچایانو دربار له ګوډاګیو، غوړه مالانو، زندان ساتونکو، میرغضبانو او نور چوپړانو له خوا، چې د ښکاري سپي په شان خوله په هر ښکار ککړوي، احاطه شوی نه وي، هېڅکله به د دوی سلطنت استوار پاتې نه شي.**

د فرانسې دربار مخکې له انقلاب څخه هم د دا ډول عناصرو ټولنه وه او د فرانسې زندانونه د دوی د استبداد او رزالت ښکارندوی ګڼل کېدل. يوه ورځ د باستيل، چې د دغو زندانونو تر ټولو مشهور زندان ؤ، د ورانېدو خبر ۱۶م لويي ته ورسېدو، څو شېبې په سوچ کې ډوب شو او دا پېښه يې ستونزمنه او خورا بدخونده وګڼله، ولې چې پوهېدو، چې د ده لويښت او د ده د سلطنت ځواک په دې زندان پورې تړلی دی او له همدې کبله د دې پېښې د پېښېدو تر موکې پورې هېڅکله حاضر نشو، د زندان عمليات شنډ کړي، تر څو چې داسې نه چې اهميت يې لږ شي او د خلکو ډار والوزي.

برسېره پر دې چې سينيورانو د خپلو ماڼيو په لاندنيو پوړونو کې د بېوزلو خلکو لپاره تور تياره بندونه لرل، د ۱۸مې پېړۍ په فرانسې کې نږدې ۲۰ زندانونو شتون لاره، چې شونې وو، چې کسان پرته له محاکمې نه هلته زنداني کړي. دا زندانونه يې د ۱۴م لويي په وروستيو وختونو کې تر ټولو متعصبه کشيشانو ته ورپرېښودل او هغو د ربړولو ډول ډول

وسایل په دې زندانونو کې راغونډ کړي وو او هر کس یې، چې د ازادۍ تر ټولو لږ فکر څرګند کړی وای، په مذهبي تورونو د زندانونو په تورو تیارو بندونو کې شکنجه کول. دې متعصبه کشیشانو بندیان په هغه کچه ربړول، چې د هغو شرح افسانو ته ورته کېږي. تور تیاره بندونه هسې له حشراتو او ځورونکو ځناورو ډک وو، چې کله کوم بندي له هغو څخه راوتلو، غوږ او یا پوزه به یې موږکو خوړلې وه. دې «دینداره» کشیشانو به ښځې دغو زندانونو ته کارولې او کله به یې هغوی امیدوارې کړې! دې «سمکارو» کشیشانو به مړي په غلطو نومونو په خپلو هدېرو کې ښخول؟، تر څو هم خپل جنایات پټ کړي او هم د خپلو سړیو شمېر ګڼ کړي.

د زندان څارل د څارندوی د نایب دنده وه، چې کله کله به د ډوډۍ خوړلو لپاره زندان ته راتللو. دې شخص د زندان له وضعې څخه هېڅ خبر نلرلو او د ده دا عمل یوازې د ظاهر ساتلو لپاره ؤ. د یوې پېړۍ په موده وه، چې د زندانونو مدیریت یې د لویانو یوې کورنۍ ته سپارلی ؤ او د دې لپاره چې د

دې کورنۍ اسیلتیا ته ضرر پېښ نه شي، اړتیا وه، چې زندانونه پاتې شي. له دې کبله هره ورځ په یوې نوې ډلې ورلوېدل، تر څو زندانونه ډک وساتي.

د هغې زمانې له دودونو څخه یو د سپینو پاڼو صدور ؤ، په دې مانا چې سپینې پاڼې د وزیر او یا پاچا په ټاپې سره اشخاصو ته ورکول کېدل او دوی کولای شول د دې پاڼو پر بنسټ هر څوک چې وغواړي، زندان ته واچوي. دا سپین ټاپیزې عمومن حاکمانو او لوړپوړه کشیشانو، هغو پلرونو ته، چې غوښتل یې خپل زامن بندیان کړي او ښایسته ښځو ته، چې غوښتل یې چې د مېړونو ستونزه له خپله سره لېرې کړي، ورکول کېدې او کله پلورل کېدې او دا عمل د پیسو لاس ته راوړلو یوه لار ګرځېدلې وه، هسې چې د ۱۵م لویي یو وزیر په یوازې توګه ۵۰،۰۰۰ سپین ټاپې صادرې کړې. یو مورخ لیکي: «هېڅ کله د بشر تر ټولو ګران ګنج، یانې ازادۍ، کې دومره اسراف نه ؤ شوی.

**د لاتـود کېسـه:** یـوې موضـوع، چې پـه ۱۸مې پېړۍ کې د فرانسې ولـس افکـار ځـان تـه راواړول، د «ژان هـانري لاتـود» (۱۷۰۵ – ۱۷۲۵) پېښـه وه. دا شـخص لـه هغـه ځایـه چې د مېـرمن دوپمپـادور، د ۱۵م لویي معشوقې، له بې مینۍ سره مخ شـو، د ۳۵ کلو موده یې په بېلابېلـو زنـدانونو کې تېـره کـړه. دا شخص یو تود او وحشتناکه سړی ؤ، چې هـېڅ ځـه کولای نشول دی اېل کړي. غبږ یې دېوالونه لړزول، زړه او جرأت یې نه ماتېدونکي وو، ځان یې تـا ویـل، چې له اوسپنې جوړ او نـه ورانېـدونکی دی، چې پـه دې ټولو زندانونو کې یې مقاومت وکـړ او وروسـت نـه شـو. پـه یـوه زنـدان کـې سـپږو د دې شـخص ځـان خوړلی ؤ – د کلمې په واقعي مانا سره یې خوړلی ؤ – دې شخص غالبن له لوږې زوبږګي ابستل، خـو غـږ یې له هغو هېرخونو څخه د چا غوږ ته نه رسېده.

هغـه څـه، چې د مېـرمن دوپمپـادور او هغـې استبدادي دستګاه په ګرمتوب (جـرم) ورزیـاتوي، دا دي، چې دا عجیب شخص دوه ځله لـه زنـدان څخـه

وتښتېدو او هر ځل یې ځان څرګند کړ. لمړی ځل یې له هغه ځایه، چې پکې پټ شوی ؤ، مېرمن دوپمپادور ته یو کاغذ ولیکه او دې امر وکړ، چې هغه دوهم ځل ونیسي او زندان ته یې وغورځوي. دوهم ځل ورسای ته لاړو او ویې غوښتل له پاچا سره خبرې وکړي، دهلېز ته هم ورسېدو، خو مېرمن دوپمپادور بیا هم د ده د نېولو امر صادر کړ او په دې عمل سره یې ثابته کړه، چې د اسیلو له طبقې څخه ده!

اتفاقن لاتود په دوهم ځل، چې زندان ته ولوېده، یو چا ته یې یو یاددښت ولېکه او د زندان د کونجۍ لرونکي په لاس یې بهر ته ولېږه. کونجۍ لرونکی مست ؤ، هغه یې ورک کړ. کاغذ د یوې ښځې په لاس کې ولوېدو. هغه یې ولوستلو، ولړزېده، خو ونه ژړېدله او د ژړا پر ځای یې لاس په کړنو پورې کړ. دا ښځه «مېرمن لوګرو» وه. بېوزلې ښځه، چې له خیاطۍ څخه یې ګذاره کوله.

مېرمن لوګرو پرېکړه وکړه، چې په هره بیه چې کېږي، دا سړی وژغوري. د درې کلو په موده پرله

پسې په دې پرېکړې پسې وګرځېده، هر څه ته چې لازمه وه، لاړله، پلار يې مړ شو، وړوکی کار يې له لاسه ووتلو، خپلوانو يې ملامته کړه او په زبونه توګه د شک وړ وګرځېده، څو ځله نږدې وو، چې زندان ته ولوېږي، خو دا له پښو ونه لوېده او بيا يې هم د بندي د خلاصون لپاره هڅه وکړه او خپل کړه يې، چې له دريمې طبقې څخه وه، په تاريخ کې د مېړمن دوپمپادور د کړو مخې ته، چې د لمړۍ طبقې د ګلو سر وه، کېښودل.

په پای کې د دې هڅو له امله له درباريانو څخه يوه کس درې ځله په دې برخه کې له ۱۶م لويي سره خبرې وکړې، خو هغه درې ځلې د لاتود د خلاصون څخه ډډه وکړه، ولې چې غوښتل يې، چې د باستيل پت خوندي شي! په پای کې په ۱۷۸۴م کال کې لويي ناهوبله شو، چې د لاتود د خلاصون امر امضا کړي او څو هفتې وروسته يې يو فرمان صادر کړ، چې نور هېڅ څوک بندي نکړي، مګر د دليل په يادولو او د مودې په ښکاره ټاکلو سره او په

ځانګړې توګه دې وروستني فرمان لا ښه وښودل، چې د فرانسې د خلکو ازادي تر کومې درجې پورې د دې او هغه د هوا او هوس لاسلوبې وه.

د لاتود د حال شرحه د باستیل د زندانیانو د ژوندانه یوازې یوه بېلګه ده. د باستیل نوم نه یوازې په فرانسې کې، بلکه په اروپا کې مشهور ؤ او د استبداد ښکارندویه بلل کېده. له دې کبله کله چې د انقلاب بیراغ پورته شو، سره د دې چې د باستیل د زندانیانو شمېر هلته دومره ډېر نه ؤ، لمړی یې د باستیل په لور مخ راوړ او د استبداد د لویښت دا پناهځای یې له پښو وغورځولو.

*****

## ۳۳

## د فرانسې ولس د پرګنو ژوند مخکې له انقلابه

ځيني تنکي زړي اشخاص د فرانسې په انقلاب نېوکه کوي، چې د ډېرو وينو توېېدو لامل شو. يو تاريخ ليکونکی داسې اشخاصو ته په خطاب کې وايي: «**اې حساسو سړيو، چې د انقلاب ناخوالو له ژړا کوی، ځو ځاځي اوښکې هم هغو ناخوالو له توپې کړی، چې انقلاب يې منځ ته راوړی.**»

هغه کسان، چې تل غواړي ولس محکوم کړي، دا ناخوالې نالبېدلې نيسي او حال دا چې د هغو په منلو سره دي، چې کولای شو د انقلاب لاملونه کشف کړو.

**دريمه طبقه:** د فرانسې بزګر د فيوډالي حاکم رژيم له امله له ځمکې څخه بې برخې وو او له انقلاب څخه مخکې دورکې يوازې د کرهنيزو ځمکو څخه يو په دريمه د دوی په لاس کې وې. د دې ملکيت پرتلې هم په بېلابېلو سيمو کې توپير موندلو

او په بعضې سیمو کې له یو پر لسمې هم لا لږه کېدله.

نظر دې ته چې د کلیو نفوس ډېر ؤ، یو شمېر کورنیو اصولن کوم مالکیت نلرلو او ان د دوی جونګړه د دوی نه وه. هغه بزګر هم چې د زمکې خاوند وو، خورا لږه برخه یې لرله، هسې چې د دوی د کورنیو د لګښت لپاره یې کفایت نکولو.

له بله پلوه له هغه ځایه چې کرهنه لا په صنعتي اصولو سره سر ته نه رسېده، یوازې ابرې نه ډکو سیمو کې وو، چې د خلکو عمده برخه په عادي وختونو کې بریالې کېدله، چې په یوه ډول، ښه یا بد، خپل خواړه چمتو کړي. دا نیکمرغي په نورو سیمو کې د خلکو نه په برخه کېدله، په ځانګړې توګه چې بحرانونه او د ابرې ټکه وهلو کلونه ډېر وو.

بزګرو یوازې له وچکالۍ څخه هېره نه لرله، بلکه هر کله به چې جګړه پېښېدله، مالیې پورته تللې او د سرحدونو خلکو مالونه به د لوټېدو وړ ګرځېدل او دوی یې پخپله بېګار ته بوول.

په همدې ترخ کې د فرانسې صنعت په پرمختګ کې ؤ او سوداګرو د بزګرو له بېوزلۍ نه ګټه پورته کوله، د هغو د کار ځواک يې ارزانه پېرودلو او په همدې موخه يې د تارسکڼلو او ټوکراوبدلو ډېرې کارخونې کليو ته منتقلې کړلې. دغو لمړني توکي بزګرو ته چمتو کول او غالبن د کار افزار يې هم هغه ته ورکول. بزګر په خپلو جونګړو کې په اوبدلو بوختېدل، په دې حال کې چې ښځه او ماشومان يې په سکڼلو بوخت وو. کله به چې په کرونده کې د کار وخت رارسېدلو، کارګاه به يې خوشې کړه، کروندو ته ستنېدل.

له بله پلوه د صنايعو پرمختګ د بيو د جګېدو او ټيټېدو لامل ګرځېده او له هغه ځايه چې فرانسه صادرونکی هېواد شوی ؤ، همدا چې جګړه او قحطي، که څه هم په لږې سيمو کې پېښېدله او يا ګمرکي حقوق ډېرېدل او يا د جنسونو پېرودل يې په نورو هېوادونو کې منعه کول، د فرانسې کارخونې په وزګارتيا محکومېدلې.

اتفاقن له انقلاب څخه وړاندې کلونو کې دا ټولې ټکې سره یوځل پیښې شوې. په ۱۷۸۸م کال کې ابره ښه نه وه، ترکیه د روسیې او اتریش پر ضد په جګړې اخته شوې وه، سویدن د ترکیې په ملاتړ ودرېدو، پروس غوښتل د انګلستان او هالند څخه تقلید وکړي، پولنډ غوښتل د تزاري روسیې استبداد سپاره له خپله سره اوچته کړي؛ له دې کبله د بالتیک او د ختیز سمندرونه چندانې امن نه وو او د مرکزي او ختیزې اروپا بازارونه وتړل شول. برسېره پر دې اسپانیې د فرانسې په ټوکرو بندیز ولګاوه.

هغه سیاست، چې د فرانسې مستبد دولت په مخه کړ، د وضعیت د تشدید لامل وګرځېدو، د بېلګې په توګه دولت په ۱۷۸۶م کې یو فرمان صادر کړ، د حبوباتو سوداګري یې له هر راز مقرراتو څخه ځانګړې کړه.

په دې توګه بزګرو، چې تر هغه وخته یې حبوبات باید بازار ته وړي وای، اوس یې کولای شول هغه په بازار کې وپلوري.

حمل او نقل د زمکې، سمندرونو او سیندونو له لارې بشپړه ازاد شول او ان د حبوباتو صدور پرته له هیڅ بندیزه مجاز ؤ. له دې کبله د فرانسې حبوبات بهر ته حمل او یا احتکار شول. تر هغه هانده، چې د ۱۷۸۹م په جنورۍ کې د هر لیور (نیم کیلو) غنمو بیه په پاریس کې ۹ شاهیو ته ورسېده او په ځینو سیمو کې لا ګران هم شو او حال دا چې ډېرو کارګرانو په ورځ کې له ۲۰، ۱۵، ۱۲ یا ۸ شاهیو څخه ډېر اجرت نه اخیستلو.

یوې بلې غلطې کړنې هم له دولت څخه سر ووهلو. د هغې بنسکارندوینه چې په ۱۷۸۶م کې له انګلستان سره سوداګریز تړون وتړلی شو او د هغه پر بنسټ د فرانسې په جوړ شویو وارداتي جنسونو ګمرکي حقوق راټیټ کړل. دا فکر اصولن بنه ؤ، تر څو د فرانسې د صنایعو د سیالۍ لامل شي، خو دا فکر یې باید په تدریج سره پلې کړی وای، تر څو د فرانسې صنایعو ته ضرر و نه رسېږي، په ځانګړې توګه چې د انګلستان صنایعو د فرانسې صنایعو په پرتله وځنډول شي او په دې ډول د ببلګې په توګه

یوازې د فرانسې په دوو ښارونو کې ۳۶۰۰۰ کسه وزګار شول او دا بحران د بیو له لوړېدو سره غبرګ ؤ.

**سوالګر او لاروهونکي:** د استبداد رژیم په پای کې د بزګرو بې برخې توب کار هغه ځای ته ورساوه، چې د هغو یوه ډله زمکې ته په کمین کې کېناستل، په دې مانا چې ځنګلونو او ډنډونو ته یې کډه وکړه، د باندې والی او ځمکو خاوندانو اشخاصو پر ضد یې څه ګامونه اوچت کړل. دغو غوښتل د پاچا، روحانیانو او لویانو زمکې وپلورل شي او یا په بزګرو باندې وویشل شي.

له بله پلوه ښکاره ده، چې بېوزلي او بدمرغي سوالګري زېږوي؛ پلانی سړی له کاره لوېدلی، پلانی زوړ سړی، پلانی یتیم او پلانۍ کونډه په هېواد کې د بېوزلۍ او نه شتونوالي له امله پرته له سوالګرۍ بله کومه مرجعه لري؟ له دې کبله د انقلاب څخه وړاندې فرانسې کې د نفوس لږ تر لږه یو پر لسمې تر پایه پورې سوالګري کوله او له یوې کلا نه بلې کلا ته تلل.

د فرانسې په شمال کې په ۱۷۹۰م کال کې د سوالګرو شمېر د اوسېدونکو یو پر پنځم ته ورسېدو او ورځ په ورځ کارګران هم په دې شمېر ورډېرېدل، ولې چې د کارګر مزد د کورنۍ لګښت لپاره کفایت نه کاوه.

نور سوالګري د شرم لامل نه وه، د کورنۍ پلار، چې څو ماشومان یې لرل، هېڅ شرم یې نکاوه، چې هغوی «ډوډۍ پسې» ولېږي. دا هم د نورو کارونو په دود یو کار ؤ – که هغه ډوډۍ، چې دوی ته ورکول کېده، ډېره کلکه وه، خپلو ډنګرو ته یې ورکوله.

هغه اغتشاش، چې د سوالګرو د شتون له امله منځ ته راتللو، د کارګرو د کډو کولو له امله تشدیدېده. د فرانسې نفوس خورا ناثباته ؤ او هر کله یې کوم بل ځای ته مخ راوړلو، چې تر څه هانده پورې ګذاره وکړي.

د بېلګې په توګه له ۱۰۴۰۰ کسانو څخه، چې په ۱۷۸۸م کې د تروا په بنار کې وزګار وو، ۶۰۰۰ کسه

یې له هغه ځایه ووتل او له یوه ښاره نه بل ته د کار او ډوډۍ په لټه لالوانده شول.

 څرګنده ده، چې له دې سوالګرو څخه یو شمېر د بې وزلۍ له شدته په لاروهلو، غلا او لوټ اخته کېدل، هسې چې د پوځ یو قوماندان د انقلاب د کال په جنورۍ کې لیکلي، له هرې خوا څخه له ما نه ډلې غواړي، چې خپل درمندونه د هغو په وزلې وساتي.

د داخلي ګمرکي لیکو تر څنګه قاچاق بشپړه دود شول او بې امنیتي یې لا ډېره کړه. ښځې په قاچاقو کې له سړیو څخه کمې نه وې، هسې چې په ۱۷۸۰م کال کې ۳۶۲۰ ښځې د قاچاقو په ګناه ونېول شوې. دا سوالګر او لاروهونکي په تدریج سره په جاني او خطرناکو کسانو بدلېدل او قضایي څواک له دې موضوع سره مرسته کوله، ولې چې هغوی یې د وړو جرمنو لپاره بندیخانو کې اچول او د واقعي جانیانو په څنګ کې یې ځای ورکولو، تر څو د جنایت زده کړه وکړي. له بله پلوه له هغه ځایه چې د قضایي څواک له مجازاتو څخه یوه جزا تبعید وه،

دې موضـوع غيـر ثابتـه نفـوس او د وزګـارو شـمېر ډېراوه.

*****

## ۳۴

## له انقلاب څخه وړاندې خوځښتونه

قحطۍ او وچکالۍ، چې په ۱۸مې پېړۍ کې ډېرې پېښې شوې، د فرانسې ولس یې خوځښت ته اړ کړ. ولس په وچکالۍ کې هم مـنلای نشـول، چې یـوازې طبیعت د بېوزلۍ او اسکېرنې مسـئول دی، ولې چې شـونې وه، چې د پرېمـانۍ پـه کلونـو کـې د وچکـالۍ ورځـو لپـاره سـپما وکـړي. شـتمنو، خانـانو او پیسـو لرونکـو د سـوداګرو پـه هملاسـۍ او د وزیرانـو او نـور شخصیتونو په ګډون، چې تـل د شـتمنو پلویـان وو، زیاتي غله یې له هېواد نه بهر ابستله، تـر څـو یـې پـه ګرانه بیه وپلوري – دولـت فرانسـوي بزګـر تـه ویـل: ستاسو بیه باید لوړه شي، تر څو خلـک د غنمـو کرلـو له وپارول شي، خـو فرانسـوی بزګـر پوهېـدو، چې دا څرګنـدونې درواغ دي. کـه عمـومي مسـلت ځـان بسندنو له اړتیا لري، ولې یوازې دی باید زغم ولـري؟

- که دولت غواړي، چې د ډوډۍ بيه لوړه کړي، لږ تر لږه لاسمزدونه هم بايد اوچت کړي او يا شتمن د بېوزلو ساتلو ته اړ کړي، نه دا چې د بېوزلو خلکو ځان بسندنه د نورو د شتمنۍ د ډېربښت وزله وګرځوي.

«نکر» د ۱۶م لويي وزير، چې د ۱۷۷۸م کال په پای کې په کار بوخت شو، غوښتل يې چې د غنمو له وتلو څخه مخنيوی وکړي او د غنمو ورود هېواد ته د جايزې له لارې تشويق کړي – خو دې موضوع که څه هم له قحطۍ څخه مخنيوی وکړ، خو ويې کولای نشول، چې د بيو د لوړېدو لپاره خنډ شي، ولې چې محتکرانو بيا هم غنم احتکار کول، د بيو د لوړېدو لامل ګرځېدل او يا غنم يې په قاچاقي لار بهر ته لېږل او بېرته يې راواردول، تر څو جايزه واخلي. بېوزلو خلکو د خپلو سترګو په مخکې درنې ګادې کتلې، چې غنم حملوي او ورو ورو دا فکر د دوی سر ته لار باسله، چې ولې دا ګاډې په زور ونه نيسي او ولې ځانونه د لوږې او مرګ منګولو ته وسپاري؟

له بله پلوه ډېر تحمیلونه پر بېوزله پرګنو بارېدل او د ټولـو چیغـې د مـالیو پـر ضـد، چې تـل مـخ پـه جګېدو وې، پورته شوې وې.

هر څوک چې څـومره لا شـتمن ؤ، لـږې مـالیې یې ورکولې او بېوزلي بزګرته هومر پانګه، چې وکولای شي خپلـه کرهنـه اداره کـړي، نـه پـاتې کېدلـه. هـر څومره چې بیې لوړېدلې، د پاچـا بودیجـه بایـد لویـه شوې وای او د دې کار لپاره اړتیا لېدل کېده، چې پر دریمې طبقې نـوی فشـار راولي. د ۱۶م لـویي دربـار خورا ډېـر لګښـتونه لـرل. لویـانو پـه همـدې پرتلـه او افسرانو د ټولو څـانګو پـه کچـه بودیجـه لرلـه. د دې لګښتونو شنډول یـوازې پـه هغـه بڼـه کې شـونې وو، چې پاچا له ټولې اریستوکراسۍ سره وهلي وای. لـه دې کبله د ولس د شـک وړ وګرځېـدو او دی یـې پـه احتکار او درغلیو کې ګډ وګڼلو.

بېوزلۍ او لوږې د فرانسې پرګنې تـه ورزده کـړل، چې د هغې پرڅـای چې ځـان، ښـځه او ماشـومان د لوږې او مرګ لاس تـه وسـپاري، د همـت لاس اوږد

کړي، هغه څه یې چې له ده نه په زور اخیستي دي، په زور بېرته واخلي. له دې کبله په ۱۷۸۹م کال کې په مارسي، تولن، اکس لاشاپل او نورو ځایونو کې د مالیو او طبقاتي باندېوالتیاوو پر ضد خوځښتونه پیښ شول. بې خبره خلکو، چې د ډوډۍ لاس ته راوړلو لپاره د خپلو زېرندځایونو او بوم څخه کډې کړې وې او په واټونو کې لالوانده وو، په ناهوبله یې د غنمو د ګاډیو لوټ ته لاس اوږد کړ او له دې هانده یې هم تېرى وکړ، د درمندونو او ان کورونو په غلا لاس پورې کړ. نامتو ده، چې اته زره کسه وږو د مارسي ښار ګېرچاپېره شتون لاره. له دې ځایه د پرګنو اسکېرنه او هغه وحشت، چې د دې وږو له یرغل نه پایله ومونده، اټکل کړى. ورو ورو له دې لوټماریو څخه ډار دومره ډېر شو، چې هر بزګر ځان د بدۍ غوښتونکو ځواکونو په محاصرې کې اند کاوه او د سپېدو په موکه، چې سر یې له خوبه اوچتولو، لمړى یې د کروند په لور منډې وهلې، چې آیا د ده شنه او اومه غنم یې لوټ کړي که نه.

دولت د دې ورو له مخنيوي څخه عاجز ؤ او د خلکو د شکايتونو له امله اړ شو، هغوی ته د وسلې لرلو اجازه ورکړي او هماغه وسله وه، چې د انقلاب پرمختګ لپاره په کار راغله.

*****

## ۳۵

## د فرانسې انقلاب نه ډېره کېدونکې ؤ

عمومن په هغو تاریخونو کې چې لیکل کېږي، ډولاډول پېښې د یو بل پر سر غورځوي او دا بې اړونده او کندکپره ډېری تاریخ بولي. دا ډول مورخان عمومن د تاریخ لوی نقش د ناڅاپه پېښو او یا د کسانو په ارادې پورې تړي او خپلو خیالونو ته د پېښو په پلټلو کې له بهرنیو واقعیتونو څخه ډېر ارزښت ورکوي.

خو هماغسې چې زموږ طبیعي پوهه د طبیعت یو انعکاس دی، چې له موږ څخه بهر او له موږ څخه خپلواک شتون لري او زموږ په خیالونو سره بدلون نه مومي، زموږ ټولنیزې پوهې هم د ټولنې د اقتصادي جوړښت یو انعکاس دی، چې د هغه بدلون زموږ د خیالونو په لاس شونی نه دی.

موږ د هغو پېښو په ترڅ کې چې په تېرو څپرکو کې مو یادې کړې، وښودل، چې د اقتصادی وضعې

د بدلو له امله یوه نوې طبقه په فیوډالي ټولنه کې رامنځ ته شوه، یانې د سوداګرو، دلالانو، کارخونه لرونکو، چې په اصطلاح کې هغو ته د بورژوازۍ طبقه وايي. دې طبقې له دې امله چې د هېواد اقتصادي وضعه یې په لاس کې نېولې وه، ډېر ځواک وموند او عملن د فیوډالي ټولنې په جوړښت کې د ځای خاوند شو، خو د یاد شوې ټولنې جوړښت، چې په پخواني اقتصادي جوړښت بنسټ شوی ؤ، د بورژوازۍ طبقې لپاره کوم ځای نلرلو، په دې مانا چې فیوډالي ټولنې د سیاسي او ټولنیزو حقوقو له پلوه یوازې درې طبقې پېژندلې، روحانیان، اسیلان او دریمه طبقه او حال دا چې بورژواګان په تدریج سره د اقتصاد له پلوه د ځانګړي ځای خاوند شول او ځانګړې طبقه یې منځ ته راوړې وه او لازمه وه، چې له ټولنیز او سیاسي پلوه هم د ځانګړو حقوقو خاونده وي. روحانیانو او اسیلو سره د دې چې د بورژوازۍ حقیقي ځواک لېدلو، حاضر نه وو، هغه ته درناوی قایل شي او د خپلو باندېوالتیاوو یوه برخه له ده سره وویشي.

د تجارت رونق د حمل او نقل پراختیا او د معاملو ګڼوالي ایجابول، چې سوداګر وکولای شي په اسانه توګه تګ او راتګ وکړي، په بېلابېلو سیمو کې په مدني لحاظ یو قانون شتون ولري، د فرانسې دولت مرکزیت وموندي، تر څو سوداګریز واټونه تر خپلې څارنې لاندې ونیسي او هغه سینیورانو ته، چې د واټونو په ساتلو کې کومه ګټه نلري، و نه سپاري، هر څوک په خپله اراده کې ازاد وي، د اشخاصو د مالونو او هوډونو درناوی وشي، خو د سینیورانو ځواک، چې هر یوه په خپلو املاکو کې له سوداګرو نوي ګمرکونه اخیستل، په خپلو ملکونو کې یې د سوداګرو په اړوند ځانګړي مقررات پلي کول، په واټونو کې یې په خپله ګټه د لارساتلو جلا حقوق اخیستل، سرفان یې ازاد نه پرېښودل او د کومو بندونو اېل نه وو، له یاد شوو غوښتنو سره جوړ نه راتللو. په فیوډالي دور کې د اقتصادیاتو اصلي لامل کرهنه وه او هماغه سرفان، چې په کلیو کې اوسېدل، په ترڅ کې یې خپل او د سینیورانو نورې اړتیاوې

پوره کولې، دبېلګې په توګه تارونه يې سکنړل، ټوکرې يې اوبدلې، بوټان يې ګنډل ... او داسې نور، هسې چې د يوه سينيور سيمه يو خپلواک اقتصادي واحد ګڼل کېده. خو ورو ورو دې وضعيت بدلون موندلی ؤ، صنعت او تجارت د اقتصادياتو مهم لامل شوی ؤ، نور د سينيورانو او د هغه د چاپېروالو اړتياوې د ده په سيمه کې نه چمتو کېدې، په دې موکه کې اصلي اقتصادي ځواک د بورژوا طبقې په لاس کې ؤ. خو د فيوډالانو طبقې نه غوښتل دا طبقه په رسميت وپېژني.

له بله پلوه د همدې اقتصادي لاملونو له امله يوه نوې څرګنده شوې طبقه په فيوډالي ټولنې کې د ودې په حال کې وه، يانې د پرولتاريا (پرولتر هغه کس ته ويل کېږي، چې د توليد له افزارو څخه بې برخې دی او د ژوند چلولو لپاره د خپل کار له ځواکه پرته بله کومه وزله نلري او دا د کار ځواک د ټاکل شوي لاسمزد په بدل کې د توليد افزارو په خاوند پلوري) طبقه کله چې لوی صنايع رامنځ ته شول، پرولتر ته يې ډېره اړتيا لرله، ولې چې پرته له

دې نه کارخونې په کار نه لوېدلې. نوې صنعتونه هسې مو چې وکتل، خپل پخپله د کارپورېشنونو د تزلزل لامل شول او موجب شول، چې کسبيان غالبن د پرولتر بڼه ونيسي. خو نويو صنعتونو له دې نه ډېرو پرولترو ته اړتيا لرله او تر هغه چې د هېواد ګڼ شمېر نفوس په زمکه پورې تړلی ؤ او د هغو واک د سينيورانو په لاس کې ؤ، نويو صنعتونو کولای نشول په کافي کچه پرولتر لاس ته راوړي. له دې کبله سوداګر او کارخونه لرونکي د سرفانو د ازادۍ جدي پلويان وو. د سرفانو ازادېدل هماغسې چې ومو لېدل، تر څه هانده پورې د اقتصادي اړتياوو له لارې پلي شول، خو نښې يې لا پاتې وې او په ځانګړې توګه له دې امله، چې يو شمېر سرفان ازاد شوي وو، دا بند پر نورو سرفانو تريخ پرېوتلو. له دې سرفانو څخه ډېرو د دې لپاره چې د سينيورانو له بنده خلاصون وموندي، تېښته يې خپلوله او په ښارونو او کليو کې لالوانده پاتې کېدل.

نو وينو، چې د ټولنې اقتصادي او سياسي جوړښتونو تر منځ شديد اختلاف شتون لاره او هغو

کسانو چې هغه سیاسي جوړښت د دوی په ګټه په پښو شوی ؤ، په هېڅ وجه حاضر نه وو، کوم بدلون هغه ته لار ومومي. ورځ په ورځ اقتصادي جوړښت بدلون موندلو او پراخېدلو او په دې سیاسي بندونو باندې یې فشار راوړلو او معلومه وه، چې یوه ورځ به خپل سیال د زور په پلي کولو سره مات کړي.

په همدې موکه کې د دې لپاره، چې فیوډالان د صنعت او سوداګرۍ له امله له متجمل ژوندانه سره اشنا شوي وو او د لا ډېرې شتمنۍ د لاس ته راوړلو لپاره یې په بزګرو باندې لا زیات فشار راوړی ؤ او د دې لپاره، چې د فرانسې مرکزیت موندلو او د هغه بهرني سوداګرۍ پراختیا ملا ماتوونکو جګړو ته اړتیا لرله، چې د هغه لګښتونه او نورې بدمرغۍ په دریمې طبقې تحمیلبدلې، د دریمې طبقې بېوزلي او بدمرغي لوړې ځوکې ته ورسېده او د هغه انقلابي تمایلاتو ته یې شدت ورکړ، چې بورژواګانو ته یې لاس په لاس کې ورکړ، تر څو د فیوډالي ټولنې بنسټ نسکور کړي.

نو وینو، چې د فرانسې انقلاب د ناڅاپه پېښو او خیالونو له کبله منځ ته رانغی، بلکه د هغه ولې په بهرني واقعیت کې وې، چې د پېړیو په ترڅ کې منځ ته راغلې وې.

د فرانسې انقلاب د څو کسو د وژلو لپاره او یوازې د کسات د اور د وژلو لپاره منځ ته رانغی، بلکه اصلي موخه یې د اجتماعي جوړښت بدلون او د اقتصادي جوړښت سره د هغه سمون ؤ.

ځیني د فرانسې انقلاب د هغه هېواد د لیکوالو، لکه د منتسکیو، ولتر او روسو د کتابونو معلول بولي، خو موږ د پېښو په ذکر سره وښودل، چې د فرانسې انقلاب د اقتصادی لاملونو زېږند ؤ، نه د دې او هغه د خیالونو مخلوق ... موږ د لیکوالانو له اغېزې منکر نه یو، خو د هغو اغېزناکوالی پرته له دې څخه دی، چې د انقلاب اصلي لامل واوسي. هغو انقلاب منځ ته نه دی راوړی، بلکه د هغه وړاند ویل یې کړی او په دې توګه د پېښېدو لار یې چټکه کړه.

هماغسې چې د زلزلې د پېښېدلو څخه پوهنيزې قضيې او يا حيواني غريزې وړاند ويل کوي، د فرانسې ليکوالانو هم د راتلونکي انقلاب څخه خبرې کولې.

**ولتر** په ۱۷۶۴م کال کې ويل: «هغه څه چې زه ګورم، د انقلاب زړی دی». **روسو** دوه کاله له ده نه وړاندې ليکلي وو: «موږ د بحران دور او د انقلابونو پېړۍ ته نږدې کېږو».

په بل عبارت د هغې زمانې وضعې او حالت د ليکوالانو د فکر دغه ډول وروزه، خو دغه فکرونه هم په خپل وار سره په ياد شوې وضعې او حالت کې اغېزناکې زبات شوې او د هغو اغېزه يې چټکه کړه.

*****

# ۳۶

## د فرانسې له انقلاب څخه څو نندارې

### د (اتاژنرو) عمومي جرګه:

په فرانسې کې د ۱۳۰۲م کال څخه راهیسې یوه جرګه د هېواد په ټولیزو چارو لکه د مالیو او وتلو طبقو د غوره والتیاوو د ټاکلو او د پوځ د ساتلو او نورو چارو کې د مشاورې لپاره د عمومي ټولنې په نامه د پاچا تر پام لاندې د ولس د ټولو طبقاتو یانې د اسیلانو، روحانیانو او دریمې طبقې له استاذو څخه جوړېده. د دې لپاره چې د دې ټولنې حقیقت ښکاره شي، د هغې د ځینو ځانګړتیاوو یادونه کوو: د دریمې طبقې له منځه یوازې د ښارونو اوسېدونکو د ټاکلو حق لرلو او د کلیو خلک له دې حقه بې برخې وو. اصولن دریمې طبقې دومره ټکبدل لبدلي او دومره د سپکاوي منلو ته اړ شوي وو، چې د عمومي ټولنې لپاره یې غالبن اسیلان د خپلو استاذو په توګه ټاکل او دې ډول استاذو څرګنده ده، چې د

خپلې طبقې په ګټه او د دریمې طبقې په زیان رایه ورکوله. د وټلو طبقو ټاکنې لمړۍ درجه او د دریمې طبقې ټاکنې دوهمه درجه وې. ټاکنې باید په لوړ غږ پلې شوې وای، ولې چې په دې توګه د دریمې طبقې وګړو د هېواد د لویانو په مخکې جرأت نکولو، د هغو نومونو څخه پرته، چې دوی ته ښودل شوي وو، نورو نومونه په ژبې راوړي. په عمومي غونډې کې د طبقو له مخه رایې اخیستل کېدې، نه د وګړو له مخې، په دې مانا چې د روحانیانو، اسیلانو او دریمې طبقې هرې یوې یوه رایه لرله. په دې توګه، د ولس ډېرکي، چې د روحانیانو او اسیلانو څو ځله وو، یوازې یوه رایه ورکوله او حال دا چې روحاینانو او اسیلانو په ګډه دوې رایې لرلې او تل په ډېرکي کې وو او په دې وسیلې یې د دریمې طبقې ګټې تر پښو لاندې کولې. د عمومي ټولنې موکه ټاکل شوې نه وه او هر کله به چې د پاچا اراده کېدله، جوړېدله. په ۱۶۱۴م کال کې عمومي ټولنې وړاندیز وکړ، چې هر لس کاله یو ځل د عمومي ټولنې جوړېدو له ګام پورته کړي، خو یاد شوې غونډه په حقیقت کې وروستۍ عمومي

غونډه وه او هغه جرګه، چې په ۱۷۸۹م کې جوړه شوه، هسې به چې وګورو، په ملي جرګې بدله شوه.

**د ۱۷۸۹ عمومي جرګه:** کله چې په ۱۷۸۹ کې پرېکړه وشوه، چې عمومي جرګه راوبلي، نکر د ۱۶م لويي وزير وړانديز وکړ، چې د کليو خلک د رايو حق ولري. د نکر دا وړانديز د سپېڅلو احساساتو له مخې نه وه، بلکه په خپل حساب سره يې غوښتل خپلې طبقاتي ګټې لا ډېرې وساتي.

نکر داسې حساب کاوه، چې په ښارونو کې د دېموکراسۍ روح ننه ايستل شوې ده، شونې ده، د ټاکنو پايله د وتلو طبقو په ګټه نه وي او حال دا چې په کليو کې اسيلان او روحانيان، چې د ټولو زمکو له درو برخو څخه د دوو برخو خاوندان دي، د خلکو پر فکرونو او روحيو باندې برلاسي دي او په ټاکنو کې د کليو خلکو ته په ګډون ورکولو سره ميليونونه وګړي له هغو کسانو څخه، چې مستقيمن د وتلو طبقو ابل دي او يا لږ تر لږه تر اغېزې لاندې يې راځي، په ټاکنو کې به د وتلو طبقو په ګټه برخه واخلي. نکر

پوهېدو، چې عمومي آراوو ته ستنيدل په ځينو حالاتو او وضعو کې شوني ده، چې د اريستوکراسۍ په ګټه پای ومومي. هغه پرګنه چې له هره ځايه بې خبره ده، هغه پرګنه چې خپل حقوق نه پېژني، هغه پرګنه چې له هرې خوا نه تر فشار لاندې پېښېږي، څنګه کېدای شي ازاده اراده ولري؟

هغه ټاکنې چې د داسې پرګنې په منځ کې پلې شي، يوازې د دې لپاره دي، چې د زورويونکې طبقې واکونه قانوني ښکاره کړي او له خپله زيارايستونکو طبقاتو څخه د هغو د ټکونو لپاره سند واخلي. نکر له داسې شيطاني نيت سره وو، چې د کليو خلکو ته يې د عمومي جرګې په ټاکنو کې ګډون ورکړ.

خو پېښې د نکر له حساب سره مخالفې پېښې شوې او کله چې ولس (د ښار او د کليو اوسېدونکو په ګډون) په رايو ورکولو پيل وکړ، څرګنه شوه، چې لازمه نه ده چې زيات څه هغه ته ورزده کړي، نږدې پنځو شپږو ميليونو کسانو رايې ورکړې.

دوی عمومن سواد نلرلو، خو ښې خبرې يې کولې او ښه تبليغ يې کولو. د کليو خلکو د رايو

ورکولو له منځو ځخه دا نتيجه ترلاسه شوه، چې ان روحانيانو د استاذو منځ ته هم يوې ګڼې ديموکراسۍ لار وموندله.

په دې مانا چې د روحانيانو په طبقې کې هم هغه بېوزلي کشيشان، چې د کليو اوسيدونکو په منځ کې يې ژوند کاوه، په کومه توګه هم له شتمنو روحانيانو سره د ګډو ګټو خاوندان نه وو. د کليو خلکو دا ډول کشيشان په ډېرې مينې سره استاذيتوب ته ټاکل او په دې توګه له هغو ځخه دو لکو کسانو، چې د شتمنو روحانيانو لوی غليمان وو، عمومي جرګې ته ولېږل.

عمومي جرګه بايد د اپرېل په ٢٧مه پرانېستل شوې وای، خو د هغې پرانيستل يې د مې مياشتې تر ۴مې پورې وځنډول. په دې موکه کې وحشتناکه ژمی او وچ اوړی په مخه راغلل او قحطي پيل شوې وه، يوازې يوه شي د فرانسې وږې پرګنې ته د صبر او زغم ياري ورکوله: عمومي جرګې ته هيله. دا يو مبهمه هيله وه او خلکو اند کولو، همدا چې عمومي جرګه خبرې وکړي، تيکې به په ډوډې بدلې شي.

په پای کې عمومي جرګه د مې په ۴مه پرانیستل شوه او ۱۲۰۰ کسه استاذو پکې ګډون وکړ، چې ۵۵۰ کسه له هغو څخه د دریمې طبقې استاذي وو. هغه شدید توپیر چې د استاذو به رسمي کالیو کې لیدل کېدو، ښودل یې، چې دغوی په حقیقت کې له درو طبقو څخه نه دي، بلکه له درو جلا ولسونو څخه دي، چې هېڅ ګډه ګټه سره نلري. دربار تر څو چې کولای یې شول، زاړه او وراسته دودونه ژوندي کړل، تر څو د دې طبقو تر منځ لا ډېر توپیر جوړ کړي. د ۱۶م لویي او د هغه چاپېروالو له دې څخه خوند اخیستلو، چې واړه کسان سپک کړي او ویې ښکني او د هغو د نوم ورکه سرچېنه د هغو په مخ وباسي. یوه ورځ مخکې له دې چې عمومي جرګه جوړه شي، استاذي یې ورسای (د پاچا د اوسېدنو ځای) ته بوتلل او معرفي یې کړل، خو پاچا د دې پر ځای چې هغوی یوځای ومني، امر یې وکړ، چې د طبقو په ترتیب سره: لمړی روحانیان، بیا اسیلان او وروسته له څو شېبو تم څخه دریمه طبقه دننه شي. په هغه

ورځ چې ۱۶م لويي جرګې ته راغی، خوله یې په سر کېښوه، اسيلانو هم وروسته له ده نه خپلې خولې په سر کېښوې، دريمې طبقې هم وغوښتل همدا کار وکړي، خو پاچا د دې لپاره چې دريمه طبقه په داسې حرکت سره ښکاره نکړي، چې له اسيلانو سره سمه ده، ژر يې خوله دوباره په سر کېښوه. د ناستې ترتيب له مخې هم روحانيان په ښی خوا کې، اسيلان په چپې خوا کې او د دريمې طبقې استاذي د دوی شا ته ځای پر ځای شوي وو.

**ملي جرګه:** د هغې ورځې پر سبا چې عمومي جرګه پرانيستل شوه، روحانيان او اسيلان هر يو خپلو تالارونو ته د خبرو اترو پاره لاړل. د دريمې طبقې استاذي هم خپل سالون ته لاړل او د هغو په تمه شول، ولې چې د دوی په باور خبرې اترې بايد په عمومي غونډې کې پلې شوې وای، خو روحانيانو او اسيلانو، چې ځانونه بشپړه جلا او د دريمې طبقې له استاذو څخه پورته ګڼل، په دې غونډې خوښ نه وو او پنځه اونۍ يې له دې څخه، چې د دريمې

طبقې له استاذو سره په يوه تالار کې کېني او خبرې وکړي، ډډه وکړه. په دې موده کې روحانيان او اسيلان په دې هکله په دسيسو بوخت وو او د دريمې طبقې استاذو له ولس سره اړيکې لرلې. نور د دې موکه رارسېدلې وه، چې د زړې نړۍ ځنډېږ خوشې کړي د راتلونکي بې پايه سمندر په مخ بادبانونه خپاره کړي. د دريمې طبقې يوه پلوي اسيلانو ته په خطاب کې ويلي وو: «تاسو خپل اسيلتوب په فتحې او بريا سره لاس ته راوړی؟ ډېر ښه، دريمه طبقه به هم د فتحې او بريا له لارې اسېل شي».

د جون د ۱۷مې په ورځ «سيه بس» د دريمې طبقې يوه استاذي وړانديز وکړ، چې زموږ غونډه له هغه ځايه چې د ولس له ۹۶ په سلو کې استاذو څخه جوړه شوې نبايد د نورو استاذو د نه شتون له امله وزګاره پاتې شي، د دريمې طبقې د استاذو غونډه دې د «ملي جرګې» به نامه ونومول شي او په کار دې پيل وکړي. دا وړانديز ومنل شو او ملي جرګې په کار پيل وکړ او «بايي» يې د رئيس په توګه وټاکه. دا

موضوع د لوی ګوزار په توګه ؤ، چې پر دربـار پرېوتـو، خـو ۱۶م لـويي بيـا د مـاري انوانـت او چـاپېروالو تـر اغېزې لاندې راغی، په دې خيال کې شـو، چې ملي جرګه د توپ او زياتي له لارې له ډګره وباسي.

د جون د ۲۰مې په ورځ، چې د ملي جرګې غړي د خپـل تـالار پـه لـور ولاړل، پيـره لرونکـو د هغـو لـه ننوتـو مخنيـوی وکـړ، دوی لـه دې لـوی سـپکاوي وروسته د زاړه ورسای يوې مانۍ پـه لـور روان شـول، په يوه تش سـالون کـې، چې پخـوا د دربايـانو د لوبـو ځای ؤ، غونډ شول او هلته يې لاسونه پورته کړل او کسم يې ياد کړ، چې مخکې تـر دې، چې فرانسـې تـه يې يو اساسي قانون نه وي ورکړی، له يـوه بـل څخـه به جلا نشي.

په دې موکه کې له لويانو څخه يوه، پـه ځـانګړې توګه د دې لپاره چې ملـي جرګـه سـپکه کـړي، پيغـام يې ولېږه، چې سـبا تـه غـواړي پـه هغـه سـالون کـې لوبې وکړي! بې خبره دربار په دې توګه لـوبې کـولې او خـوښ ؤ! ملـي جرګـه يـې لـه هغـه سـالون څخـه

وایسـتله هـر چېـرې چـې ولاړه هغـه یـې وشـړله. دا لالوانده ډلـه، دا خطرنـاک ټـولګی، چـې ټـولې دړې د دوی پر مخ تړل کېـدې، کـوم کسـان وو؟ دغـوی پـه خپلـه ولـس ؤ، چـې ټـول ورونـه د هغـه پـه مـخ تـړل شوي وو.

د جون د ۲۳مې په ورځ عمومي جرګه بیا د پاچـا په حضور پرانېستل شوه. خـو پـه دې حـال کـې چـې اسـیلان او روحانیـان د لـویې دړې څخـه تـالار تـه ننوتل، د دریمې طبقې استاذي د وره شا ته تر بارانـه لانـدې د پیـره لرونکـو سـره یـې د اجـازې پـه هکلـه خبرې کولې. په دې ورځ یې ننداره کوونکـو تـه هـم لار ورنه کړه. پاچا تالار ته ننووت او خبرې یې وکړې او یادونه یې وکړه، چې د دریمې طبقې اسـتاذي پـه هېڅه توګه حق نلري د وتلو طبقـو لـه پرېکـړې پرتـه کوم تصمیم ونیسي او د خپلو خبرو په پـای کـې یـې وویل:.

«ښاغلو زه تاسو ته امـر کـوم، چـې ژر پخپلـو کـې سره جلا شی او هر یو به هغه تالار کـې، چـې سـتاسـو د طبقـو لـه پـاره ټاکـل شـوی، حاضـر شـی». پاچـا

وروسته له خپلو خبرو بهر ووتلو. اسیلان او روحانیان هم بهر ووتل. خو د دریمې طبقې استاذي د چوپتیا او غوسې په حال کې پاتې شول. د تشریفاتو رئیس راغی او د ملي جرګې رئیس ته یې خبرې وکړې او ویې ویل:

"بناغلو! د پاچا امر مو واورېده؟» په دې موکه کې میرابو، معروف ویاند، د تشریفاتو رئیس ته مخ راواړاوه، خپلې تاریخي خبرې یې وکړې: «ورشی هغو کسانو ته، چې تاسو یې رالیږلي یاست،ووایی، چې موږ د ولس په ارادې دلته راغلي یو او موږ کولای نشی له دې ځایه لېرې کړی، مګر د سانګو د سر په څواک».

د تشریفاتو رئیس د دې خبرو د هیبت له امله د ملي جرګې په وړاندې له دړې څخه هماغسې زبون بهر لاړو، لکه د پاچا په وړاندې چې بهر لاړ ؤ، ملي جرګې په کار پیل وکړ او په همدې غونډې کې یې د جرګې دغړو د مصونیت په هکله رایې ورکړې.

**پوځ:** په دې موکه کې د دربار ټوله هېله پوځ ته وه. له دې کبله بې اړونده نه ده، چې یو څه د هغې زمانې د پوځ په هکله خبرې وکړو.

د شپاړسم لویي بودیجه د افسرانو لپاره ۴۶ میلیونه خو د سرتېرو لپاره یوازې ۴۴ میلیونه وه، له دې ځایه پوهېدی شو، چې څه لوی توپیر د پوځ د افسرانو او سرتېرو تر منځ شتون لاره. سرتېري باید تل د سرتېری په درجه کې پاتې شوي وای او د هغو جبرې او حقوق په بېلابېلو پلمو د افسرانو مړې کېدل او حال دا چې افسران تل د لویانو زامن وو، چې په بشپړه هوساینې او څواک کې یې ژوند کاوه. له دې کبله مازې دا چې د فرانسې انقلاب پیل شو، د افسر او سرتېري تر منځ بېلتون ولوېده. د دې لپاره چې په بشپړه توګه بنکاره شي، چې پرګنې څومره له افسرانو نه کرکه لرله، یادوو، چې د «کان» په بنارکې کله چې خلک راووتل، د یوه افسر زړه یې، د هغې کرکې له امله چې له دوی نه یې لرله، راوویسته او ویې خوړلو.

دا ټکي هم باید ووایو، چې د فرانسې ملکې، دا د ښکلو ښکلې، لوی افسران یې ځان ته بلل، هغو ته یې شراب ورکول او په خوږو خبرو او مینه پاروونکو کتلو سره یې هغه له لارې ایستل، تر څو په ولس باندې تورې وباسي.

خو د سرتېرو په هکله خبره کاملن برعکس وه. سرتېری، چې د استبدادي سلطنت په دورکې د ټولنې له باندېوالتیاوو څخه په بشپړه توګه بې برخې وو، د ولس له خوا یې په بشپړه مینې سره هرکلی کېده. اصولن سرتېری د عسکرۍ تر کالیو لاندې پرته له ولس څخه بل څه شی دی! دوه ورونه دوه زامن، یوه مور، سرتېری او پرګنې یوبل ته ورسېدل او د یوه بل په غېږه کې ولوېدل.

د جون د ۲۷مې په ورځ د ګارډ رئیس ۱۱ کسه سترتیري، چې کسم یې یاد کړی ؤ، چې په هېڅ اړوند کې به د جرګې له امر سره مخالفت ونکړي، زندان ته واچول او ان له دې هانده هم پورته لاړل، ویې غوښتل هغوی له پوځي زندان څخه راوباسي او د غلو زندان ته واچوي. کله چې د سرتېرو د بندي

کولو خبر خلکو ته ورسېدو، يو ځوان د چوکۍ پر سر پورته شو او چيغه يې ووهله: «ځې چې زندان ته لاړ شو، هغه کسان، چې نه يې غوښتل په ولس باندې ډزې وکړي، وژغورو!» خلک په لاره ولوېدل او کله چې زندان ته ورسېدل، د دوی شمېر نږدې څلور زره کسه ؤ. د زندان دړې او تنه يې په تبرونو سره مات کړل او سرتېري يې وژغورل. کله چې بهر راووتل، د دربار يو شمېر سرتېري توره په لاس راورسېدل، خو هغو هم ونه غوښتل، د هغو کسانو پر مخ، چې سرتېري يې ژغورلي وو، توري وباسي. ټولو سره د پخلاينې لاسونه ورکړل او يوبل ته يې شراب راوړل، په روغتيا سره يې وڅښل. ولس موکه غنيمت وګڼله او نور بنديان يې هم خلاص کړل. د حبسيانو په منځ کې يو زوړ سړی ؤ، چې په زندان کې د ورستېدو په حال کې ؤ او نور په لاره تللای نشوو. دا بې وزلی، چې اوږده موده تر شکنجې لاندې پاتې ؤ، هومره تر اغېزې لاندې راغلی ؤ، چې

نه پوهېدو څه ووايي: «بناغلو! زه به له دې ټولې مينې څخه مړ شم».

**د باستيل راپرځېدل:** د ملي جرګې ګامونه د دربار د ترهورتيا لامل شول او په لټه کې شو، چې زور ته متوسل شي، خو په فرانسوي وګړو يې باور نلرلو، چې په خپلو هېوادوالو به غشي وشېندي، له دې کبله يې سويسيو او جرمنيو ځواکونو ته، چې د فرانسې دولت په چوپړ کې وو، پناه راوړه او هغوی يې د ورسای او پاريس خوا ته راغونډ کړل. دلته بايد دا ټکې ياد کړو، چې يوه موضوع، چې د حاکم هيئت لاس وند (دستاويز) ده، ملي حيثيت او شرافت دی. حاکمه هيئت تل زيارايستونکو پرګنو ته نصيحت کوي، چې د بهرنيو په وړاندې د خپلې ببوزلۍ او اسکېرنې له يادولو څخه ډډه وکړی، ولې چې د ملی حيثيت سره مخالفه ده، که څه هم د حاکمه هيئت تر فشار لاندې وړه او واړه هم شی، له پرديو څخه د هېڅ مرستې توقع مه لري، ولې چې د ملي حيثيت سره مخالفه ده. خو همدا حاکمه هيئت مازې دا

چې، د هغو ستم کتلو پرګنو په وړاندې، چې چاره يې هڅوکو ته رسېدلې او د خپل ژوندانه حق لپاره يې پاڅون کړی، عاجز پاتې کېږي، ژر او پرته له کوم شرم او حيا څخه د بهرنيو مرتجعينو ځواکونو ته لاس غزوي او د ملي حيثيت هېڅ پروا نلري. دا حقيقت څو ځله د فرانسې په انقلاب کې څرګند شو. يو په همدې موکه کې وو، چې له څوپړو پردو څخه ګټه پورته شوه او بل په هغه موکه کې وو، چې د فرانسې انقلابي دولت د ټکولو لپاره يې له تر ټولو مرتجع دولتونو څخه، چې فرانسې سره يې زړه دښمني لرله، مرسته واخيستله.

د جون د ۱۱مې په ورځ يې **نکر**، چې د ځينو وړانديزونو په وجه د ولس د دوستۍ وړ ګرځېدلی ؤ او پاچا ته يې د درباريانو د ګټو په خلاف ځيني نصيحتونه کول، لېرې کړ. مازې دا چې دا خبر خپور شو، خلکو دا خبر د وضعې هراز بنه کېدو څخه د مخنيوي په مانا ومنلو او په هره کوڅه او سيمه کې يې غونډې جوړې کړي، له لسو زرو څخه ډېر کسه

ټول شول. په دې موکه کې یو ځوان، چې وروسته مشهور شو، «کامیل دمولن»، د یوه مېز په سر ودرېد. په دې حال کې، چې تمانچه یې په لاس کې وه، چغه کړه: «خلکو! یوه شېبه هم د تم کېدو ځای نشته دی، د نکر لېږې کول د دې نښه ده، چې د وطن پالو بدنامي غواړي په لاره واچوي. همدا نن شپه به د سویس او جرمني ټول غونډونه زموږ د وژلو لپاره د مارسي له لارې راووځي. یوازې یوه وزله موږ ته پاتې ده او هغه د وسلې اخیستل دي». له دې وړاندیز نه خلکو د لاسونو له شور نه په ډکې پړکا سره هرکلی وکړ او هغه ځوان بیا وړاندیز وکړ، جګړه کوونکي وګړي د دې لپاره چې یو بل وپېژني او له یو بل نه ملاتړ وکړي، شنه نښه، چې د هیلې لرلو رنګ دی، په ځان پورې ومونښلوي او خپله یې د ونې یوه پاڼه راواخیستله او په خپلې خولۍ پورې یې وټومبله او نورو له ده څخه تقلید وکړ.

خلک د ۱۳مې او ۱۴مې په ورځ د وسلې په ټولولو پسې وو او څو وسله خونې یې لوټ کړې. په وروستۍ ورځ کې خپره شوه، چې د باستیل توپونه پر

ښار د ګوليو ورولو لپاره چمتو دي. خلکو چې د دې کرکه جن ځاى ښخه شديد وحشت لاره، له هرې خوانه يې په توره، ټوپک او سانګو سره سمبال د باستيل په لور وځغستل، هغه يې کلابند کړ او د باستيل د پلونو په خرابولو بوخت شول. نږدې ښلور ګنټې د باستيل له محاصرې ښخه تېرې شوې وې، چې ځيني فرانسوي سرتېري هم د خلکو مرستې ته راغلل او په يو ځل يې يرغل راوړ، باستيل يې ونيوه او د هغه په ورانولو بوخت شول، يوه د باستيل کونجې او بيراغ په لاس کې نيولى وو، يوه د زندان د مقرراتو پاڼه د خپلې نيزې په ښوکه پورې موښلولې وه، يو بل د زندان د رئيس سره د سانګې په سر کې لرلو.

دې ډاروونکې ورځ، سره د دې چې ډېرې وينې تويېدنې يې ولېدې، په ځينو موکو کې يې د جشن او خوښې بڼه ځان ته نيوله: زخميان يې د برې د بيراغ په نښه وړل راوړل او د هغو تذکرې يې په ګلونو پټولې او په درې رنګه ښادرونو يې سينګارولې.

په راتلونکې اونۍ کې يې د باستيل په وېجاړو باندې د اتڼ مجلس پيل کړ او په هغو وېجاړو يې بېنرونه وځړول، چې : دلته د نڅا ځای دی.

د باستيل کونجې، دا قهرجنې کونجې، چې د وخت په تېرېدو او د بشري دردونو سره اړيکو څخه ورستې شوې وې، اتفاقن دهغه چا په لاس کې ولوېدې، چې هغه يې ښې پېژندلې، د ملي جرګې يوه پخواني بندي دا کونجې په خپلې ولکې کې کېښودې او د روزګار د زړو ستمګرو دا ماشين يې د هغو قانونونو په څنګ کې، چې ستمکوونکي يې مات کړل، کېښوې او دا کونجې لا اوس هم د فرانسې په اوسپنيز قفس کې ساتل کېږي. کاشکې د نړۍ د ټولو باستيلونو کنجې د دې کونجيو په څنګ کې بندې شي.

**دربار او پاريس:** د دربار توطئه کوونکو، چې ملکه ماري آنتوان يې په سر کې وه، په داسې موکې کې بيا هم د پاريس او ملي جرګې پر ضد په دسيسو بوخت وو او د ۱۴مې – ۱۵مې شپه يې په پاريس باندې د يرغل لپاره ټاکلې وه. د پاريس خلکو هم،

چې د دې خچنو نیتونو حدس واهه، د ښار په ټینګولو بوخت شول او مرچې یې جوړې کړې او ان ښځو ډبرې او لوټې د بامونو سر ته یوړې، تر څو د سر تېرو پر سر یې وغورځوي. ملي جرګې دوه ځله پاچا ته استاذي ولېږل او موقعیت یې ښکاره کړ، خو پاچا لا هماغسې غافل ؤ او خپله وفا یې د وتلو طبقو د ګټو په اړوند اعلاموله. په پای کې د شپې په وخت د موکې له وخامت څخه خبر شو او سبا سهار پرته له ګارد څخه ملي جرګې ته راغی. د پاچا د راتګ خبر د جرګې د غړو په منځ کې بې هانده خوښي را منځ ته کړه، خو بیا په دې موکه کې د **میرابو** اغېزناک غږ پورته شو: «صبر وکړو، تر څو اعلیحضرت هغه د ستایلو وړو پرېکړو خبرتیا، چې د ده له خوا یې زېرۍ ورکړ شوی، موږ ته راکړي (او هغه وخت د ښادۍ څرګندونه وکړو) زموږ د ورونو وینې په پاریس کې بهېږي.

**د یوه بدمرغه ولس د استاذو هرکلی له پاچا څخه باید په غم لړلې بڼه پلې شي: د ولسونو چوپتیا د پاچایانو لپاره یو درس دی».**

پاچا ملي جرګې ته راغی او د خپلې وینا په ترخ کې یې وویل: «زه ځان تاسو ته سپارم». له دې کبله په بشپړه مهربانۍ سره له ده نه هرکلی وشو. ملي جرګې دی تر سلطنتي ماڼۍ پورې بدرګه کړ. ۱۶م لویي هم ملي جرګې ته اعلام وکړ، چې «نکر» به ببرته په کار وګماري او سبا به د ولس د آرامولو لپاره پاریس ته ولاړ شي. په پاریس کې هم له ده نه، چې ظاهرن د ولس خوا ته ببرته ستون شوی ؤ، درون هرکلی وشو.

خو نکر، چې د خپلو ځینو پرېکړو له امله چې د خلکو د مینې وړ ګرځېدلی ؤ، ژر خپل محبوبیت له لاسه ورکړ، ولې چې نکر غوښتل د اصلاحاتو، سولې او جوړښت له لارې له انقلاب څخه مخنیوی وکړي او حال دا چې خلک د انقلاب په وړاندې، چې پرګنې په خوځښت راولي، هېڅکله د درېدلو توان نلري او څوک چې غواړي د انقلاب اتل واوسي، باید د هغه په وړاندې روان شي او ګوندې د ده شا ته پاتې کېدل او په زمکه لګېدل یو دي.

**د مالکیت سن بار تلمي:** (لمړی څرګندوو، چې سن بار تلمي د ۱۵۷۲م اګوست ۲۴مې ورځې ته ویل کېږي. په دې ورځ کې کاتولیکانو د ګټه لټوونکو کسانو په پارولو سره په پروتستانتانو ورغلل، ګڼ شمېر ښځې، سړي او ماشومان یې د پسونو په توګه ووژل او تر څو ورځو پورې یې په فرانسې کې دې عمل ته پایښه ورکړه).

د پاریس خوځښت ولایتونو ته سرایت وکړ او په هغه ځایونو کې هم خلک د لوړو طبقو د باندېوالتیاوو په له منځه وړلو بوخت شول. په ښارونو کې یې د پخوانیو مامورینو پر ضد، چې له هر ډول بدلون سره مخالف وو، پاڅون وکړ. په کلیو کې یې د سینیورانو ماڼیو ته اور ورته کړ. ملي جرګې باید د خلکو د کرارولو لپاره د باندېوالتیاوو د له منځه وړلو په هکله تصمیم نیولی وی او دا کار د اګوست په ۴مه پلی شو او د سینیورانو قضاوت، د مالیاتو په مقرراتو کې توپیر، د کارپوریشن مقررات او نور لغوه شول.

دې شپې فیوډالي نښې راوپرځولې، پرګنې یې د سرواژ ناتار له بقایاوو څخه خلاصې کړې، زمکې یې د سینیورانو لـه منګلـو راووېستلې، د سینیورانو د قضاوت په له منځه وړلو سره، چې د فردي ځواکونو پاتې شونې وه، عمومي او ملی ځواک یې مستقر کړ. دې شپې د فرانسې څېره واړوله او فرانسویان یې د سیاسي حقوقو لـه پلـوه یوشانې کړل. دا شپه د «مالکیت سن بارتلمي» ونومول شوه.

**په ملي جرګې کې د ننه توپیرونه:** په دې موکه کې د فرانسې ولس په حقیقت کې په دوو برخو ویشل کېده: یو د مزایاوو خاوندان، چې لـه انقلاب څخه یې د زړه لـه کومې کرکه لرله او بل د ولس دریمه طبقه، چې انقلاب د دوی یوازېنې هیله وه، خو دوی هم په دوو ډلو ویشل شوي وو: یو هغه کسان، چې غوښتل یې چې انقلاب خپلو وروستنیو پایلو او اغېزو تـه ورسوي او بل هغه کسان، چې شدید او یو ډنډه مخالفت یې په صلاح نه ګڼلو او په دې باور وو، چې ملي جرګه باید راضي کړي او د

انقلاب اور لـه دې وروسـته بایـد د ځینـو اصـلاحاتو سره مړ کړي.

لـه دغـو ډلـو څخـه هـرې یـوې پـه جرګـې کـې استاذي لرل. کله چې د ولس د کرکې اور په خوټېدو راغی او سیل ډوله بهانـد شـو، لمـړی او دوهمـه ډلـه خوامخـوا د انقـلاب اېـل شـوې، ولـې چـې د هغـه پـه وړاندې چا د درېدلو جرأت نه لرلو او په ترخ کـې یـې اند نه کولو، چې د انقلاب سېل دې پایداره واوسي او عومن یې اند کولو، چې پېښـې بـه ژر تېـرې شـي او بېرتـه بـه د پخـواني نظـم لاسـبرى څرګنـد شـي، خـو وروسته له دې چې د انقـلاب څخـه څـه مـوده تېـره شوه او ملي جرګې په کار پیل وکړ، دا توپیرونه ښکاره شـول او د اسـیلانو او روحانیـانو پلویـانو هڅـه وکـړه، چې د ملي جرګې پرېکړې بې اغېزې وګرځوي.

خو برعکس انقلابي ډلې پـه ډېرکي بانـدې تکیـه لرله او غوښتل یې چې د جون د ۱۴مې انقلاب بشپړ کـړي. د جـون د ۱۴مـې انقـلاب پـه حقیقـت کـې حکومـت یـې د فیـوډالي مطلقـه سـلطنت لـه لاسـه واېسته او د بورژوازۍ لاس ته یـې سـپارلی ؤ. د ملي

جرګې انقلابي ډلې غوښتل چې د انقلاب دا پایله لا وړاندې بوځي او داسې کار وکړي، چې بورژوازي د انقلاب یوازېنۍ ګټه پورته کوونکې نه وي. دې انقلابي ډلې په همدې حال کې چې د بورژوازۍ د ګټې پلویانو ته یې په غالبو مسائلو رایه ورکوله، په ځینو مسائلو کې یې له هغو سره مخالفت لرلو، ولې چې له هغو څخه لا کینې وو. دې ډلې باور لرلو، چې ولس همدا چې خپل حقوق یې ترلاسه کړل، په هوساینې بوختېږي او دا هوساینه هغه ضعیفوي. له دې کبله د دې لپاره چې ولس تل په ویښ حال کې وساتي، د ټولنو او کلوپونو په جوړولو یې پیل وکړ. تر ټولو معروف کلوپونه عبارت وو له:

**د ژاکوبنانو کلوپ:** ژاکوبنان پخوا د روحانیانو یوه ډله وه او له هغه ځایه چې دا کلوپ د دوی په پخواني ځای کې جوړ شو، د هغوی انقلابي غړي هم به ژاکوبن معروف شول. دغه ترټولو ترخه انقلابیان وو او تر پایه شېبو پورې یې د انقلاب له مخکښو نه ملاتړ وکړ. د ژاکوبنانو د کلوپ بنسټ ایښودونکي باید **برناو، دوپر او لامت** وبولو.

**د کردولیه وو کلوپ:** کردولیه ګان هم پخوا د روحانیانو یوه ډله وه او له هغه ځایه چې دا کلوپ د دوی په پخواني ځای کې جوړ شو، د هغه انقلابي غړي هم په کردولیه معروف شول. دا کلپ په ۱۷۹۰م کې دانتون بنسټ کېښوده او په پای کې د ژاکوبنانو له کلوپ سره یو شو.

دې کلوپونو د شاه او روحانیانو پر ضد او په عین حال کې پخپله ملي جرګې پر ضد، چې د هغه ډېرکي د انقلاب له ادامې څخه ډارېدل، مبارزه کوله.

**میرابو** د ملي جرګې له منځني حاله غړو څخه ؤ. پلار يې له لویانو څخه ؤ او د خپل زوی سره یې، چې ازاد او په عیاشۍ ککړ ژوند یې درلوده، ډېر کلک چلند کولو او ان هغه یې حبس ته واچاوه. د هغه د ازادۍ روح سرغړونه وکړه او د فرانسې په انقلاب کې د انقلاب په سر کې ودرېدو، خو د انقلاب له ادامې سره یې موافقت نلرلو او د هغو خبرو اترو له کبله، چې له دربار سره یې په پټه سر ته رسولې وې، غوښتل یې چې سلطنت وژغوري، د فرانسې لپاره مشروطه حکومت جوړ کړي. ان وایي، چې میرابو د

خپلو پورونو د پرې کولو لپاره له دربار څخه ډېرې پیسې تر لاسه کړې. له دې موکې وروسته میرابو خپله ژبه وړتیا او خبرلوځي د دربار په چوپړ کې وګمارل، خو مرګ میرابو ته موکه ورنکړه او د ۱۷۹۱م د اپریل په ۲مه مړ شو. وایي، د ده وروستنۍ خبرې دا وې: «زه د سلطنت ویر په خپل زړه کې وړم».

**د شاه تېښته:** د میرابو مرګ، چې د سلطنت پلوی ؤ، د انقلاب خوځښت د پاچا پر ضد لا چټک کړ. ۱۶م لویي په دې موکې کې یوازې یو فکر لاره او هغه دا ؤ، چې ځان او خپله کورنۍ امن ځای ته ورسوي. له دې کبله یې توطئه وکړه، چې له پاریسه وتښتي او «موندي مدي» او له هغه ځایه «وارن» ته لاړ شي او خپله اراده پر بهر باندې په تکیې سره پر ملي جرګې تحمیل کړي، ان د وین دربار ته یې استاذی لیږلی ؤ او هوډ یې اخیستی ؤ، چې د داخلي جګړې په ترخ کې د فرانسې په چارو کې لاسوهنه وکړي او په خبل کاغذ کې یې د وین دربار ته لیکلي وو: «که اړتیا وي، چې پاریس ته اور واچوو، وبه یې

سوزوو او اوسېدونکي يې ووژنو، د لويو بلاګانو په موکه کې بايد لويې درملنې وکاروو.» دا وه هغه درملنه، چې د فرانسې پاچا خپل ولس لپاره يې وړاند وينه کوله! وروسته چې دا پاچا د ولس په لاس ووژل شو، ځينو ځينو نري زړونو، ځينو کسانو، چې له خپلو سوګمو نه وړاندې کتلای نشي، د هغه پر حال غمجن شول او په نظر کې يې ونه نېول، که دا سړی بريالی شوې وای، د يوه ښار او يوه هېواد اوسيدونکي به يې له څه برخه ليک سره، هغه هم د پردو په لاس مخامخ کړي وای.

په هر حال، تېښته د ۱۷۹۰م د جون په ۲۰مې پلې شوه. د ملکې يو مين د ګاډې چلوونکي په توګه وټاکل شو او پاچا د کورنۍ د چوپړ په جامه کې ننوت. خو اتفاقن د لار په منځ کې وپېژندل شو او هغو سرتېرو، چې هغه يې خپل ساتونکي بلل، د افسرانو له امر څخه سرغړونه وکړه، له ده نه ملاتړ ونکړ، د پاچا او ملکې ټينګار او زارۍ هم کوم ځای ته ونه رسېدې. په پای کې يې دوی له درو کسو

استاذو سره، چې د ملي جرګې له پلوه لېږدول شوي وو، پاريس ته ستانه کړل.

لس ورځې وروسته يې د فرانسې اساسي قانون په هغه ماتې خوړلي پاچا باندې امضا کړ. په دې توګه د ملی جرګې دنده، چې د بنسټ اېښودونکو جرګه هم بلل کېدله، پای ومونده او فرانسه وروسته له دې بايد د اساسي قانون پر بنسټ اداره شوې وای.

**د فرانسې لمړي اساسی قانون ته يوه کتنه:** د بنسټ اېښودونکو جرګې د «بشر د حقوقو اعلاميه» صادر کړه، چې موږ به د کتاب په پای کې د هغې ژباړه راوړوو، خو له هغه ځايه چې د ياد شوې جرګې ډېرکی بورژواګانو جوړاوه، هغوی په عين حال کې، چې غوښتل يې د پاچا واکونه محدود کړي، په هڅه کې وو، چې د ولس پرګنې هم قيضه کړي او له دې نه چې انقلاب لمن وغزوي، مخنيوی وکړي. دا موضوع په ځانګړې توګه د ټاکنو په قانون کې، چې د بنسټ اېښودونکو له خوا جوړ شو، لېدل کېږي. د

دې قانون پر بنسټ یوازې هغه کسانو، چې د درو ورځو کار په ارزښت یې مستقیمن مالیې پرې کولې او د هغو شمېر ۴،۲۹۸،۰۰۰ کسه ؤ، د رایې حق لرلو او درې میلیونه پاتې له دې حقه بې برخې وو. هغو څلورو میلیونو کسانو هم له هرو سلو کسو څخه یو کس «ټاکونکی» ټاکلو او دا کس باید د هغو کسانو له منځه وټاکل شي، چې لږ تر لږه یې د لسو ورځو کار په کچه مستقیمې مالیې پرې کولې. په پای کې استاذي چې د «ټاکونکو» له منځه ټاکل کېدل، باید له خانانو څخه وي او ټاکلې برخه مالیې هم پرې کړي. په دې توګه یاد شوی قانون یوازې د شتمنو په ګټه لیکل شوی ؤ.

د دې قانون پر ضد کلک اعتراضونه تر سره شول، مارا په خپله ورځپاڼه کې ولیکل:

«موږ به د اسیلانو د اریستوکراسۍ له پرځولو کومه ګټه وړې وي، که د شتمنو اریستوکراسي د هغه پر ځای کینوو؟»

**ربسپیر** د ولس په ګټه یو ادعا لیک صادر کړ، په هغه ځای کې یې وویل:

«شتمن د هر څه مدعي دي. هغوی غواړي هر څه په تصرف کې راوړي... هغوی د ولس په سر ټکه دي. تاسو غواړي ولس هېڅ کړی او مطلق ځواک شتمنو ته ورکړی!»

**د قانون جوړولو جرګه:** د بنسټ ایښودونکو دنده، وروسته له هغه چې د فرانسې اساسي قانون یې د پاچا په امضا ورساوه، پای ته ورسېده. د قانون جوړولو جرګې لپاره ټاکنې پیل شوې او وروستنۍ جرګې د ۱۷۹۰م د اکتوبر له لمړي نه په کار پیل وکړ.

د قانون جوړولو په جرګې که درو ډلو، درو ټولنو او درو ګوندونو شتون لاره:

۱ – سلطنت غوښتونکي او مشروطه غوښتونکي، چې د جرګې په ښۍ خواته ناست وو.

۲ – مردده او رنګ اوړونکي منځ لاري، چې په خپلو پرېکړو کې ثابت نه وو او د دواړو خواوو په کرښو کې یې منډې رامنډې وهلې.

۳ – کیڼ لاسي انقلابیان، چې هغوی هم پر دوو ډلو ویشېدل: یو ژیرندنان، چې له هغه ځایه چې

اکثرن د ژیرندن اوسېدونکي وو، په دې نوم ونومول شول. نور غرني، چې په پورته کرښو کې راتلل، په دې نوم معروف شول.

ژېرندنان او غرني دواړه د دربار مخالف او په خپله پاچا باندې بې باوري وو، خو غرنیو لا ډېر صراحت او جرأت ښودلو، رسمن یې له جمهوریت او د پاچا له عزل نه پلوی کولو او په ځانګړې توګه له دوی څخه یوه ډله په دې باور وو، چې د انقلاب د ژغورلو لپاره باید ټول مظنون کسان له منځه ټول کړي. له دې کبله په وروسته کلونو کې د دې دوو کینهو ډلو، ژیرندنانو او غرنیو تر منځ هم کلک غلیموالی رامنځ ته شو.

هغه څه چې د قانون جوړلو جرګې ته ځواک ورکولو دا وه، چې هغو په پرګنو تکیه لرله او د ژاکوبنانو په کلوپونو او ورځپاڼو کې د خپلو اصولو لپاره په تبلیغاتو بوختېدل.

ژاکوبنان نږدې ټولو ښارونو او کلیو کې د اوډلو څانګو خاوندان وو او نسبتن اوډلي تشکیلونه یې درلودل او همدې موضوع په هغه موکه کې، چې هر

څه له ګډوډۍ سره مخ شوي وو، هغو ته ځانګړی ځواک ورکاوه او هغو کولای شول خپله اراده د هغه فعالیت او انظباط له امله، چې دوی لاره، پر نورو تحمیل کړي.

له دې کبله یې وکولای شول د ۱۶م لویي کابینه راوپرځوي، له ژیرندنانو څخه یوه کابینه د «رولان» په ریاست د کار پر سر راولي او د دې کابینې لمړنی کار دا وو، چې د ۱۷۹۲م کال د اپریل په ۲۰مه د اطریش امپراطور ته، چې د ۱۶م لویي له هڅونه د فرانسې انقلاب پر ضد څه ګامونه پورته کول او دې هېواد باند د یرغل په هڅه کې ؤ، د جګړې اعلان ورکړي.

د قانون جوړولو جرګې له مهمو پرېکړو څخه یوه د پاچا عزل او د مشروطیت اعلان ؤ، چې د لاندې پېښو له امله رامنځ ته شو.

د قانون جوړولو جرګې د داخلي او بهرنیو ستونزو د لبرې کولو لپاره درې فرمانه صادر کړل، خو پاچا د هغو له لاسلیک څخه ډډه وکړه او د جرګې د ښې ډلې په تکیې سره یې د جون په ۱۳مه

د ژیرندنانو کابینه ړنګه کړه. ژیرندنانو د پاریس د حاکم په ملاتړ هوډ وکړ، چې د جون په ۲۰مه د هماغې ورځي په ترخ کې، چې د ملي جرګې غړي د ورسای د لوبو په سالون کې ټول شول، د پاریس په کوڅو کې د پاچا پر ضد یو لاریون وکړي، د پاریس له خلکو زرګونه کسان په هغه ورځ راټول شوي وو، د پاچا پر عملیاتو یې اعتراض وکړ او سلطنتي ماڼۍ ته ورغلل، پرېمانه ښکنځلې یې د پاچا په مخ کې هغه ته وکړې.

ژیرندنیانو په هغه ورځ بشپړه بریا ونه موندله او ویې نشول کولای پاچا د خپلو پرېکړو نه ډډه کولو ته اړ کړي، خو بیا له پښو پاتې نشول او د «ربسپیر» په مشرۍ یې خپلو اقدامونو ته پایښه ورکړه. اتفاقن په دې موکه کې څه اسناد لاس ته راغلل، چې د ۱۶م لویي جوړښت یې د اطریش له پاچا سره د انقلاب راپرځولو لپاره په بشپړه توګه څرګندولو. دې اسنادو د «ربسپیر» تبلیغاتو ته نوی ځواک ورکړ او انقلابیانو د مخکېني جوړښت له مخه د اګوست په ۱۰مه لاس په خوځښت پورې کړ، د پاریس حکومت

يې عزل کړ او په خپله د پاريس حاکمان شول او ۱۶م لويي د هغو له ډاره اړ شو، د قانون جوړولو جرګې ته پناه يوړي. خو خوځښت کوونکو، چې د مارسي يو شمېر زړه ور اوسېدونکي يې په منځ کې وو، خپل يرغل ته د پاچا پر ماڼۍ پايښنه ورکړه او سره د ډېرو تلفاتو هغه يې تصرف کړه.

د اګوست ۱۰مه ورځ د جولای له ۱۴مې وروسته د پرګنو دوهم برى ګڼل کېږي، چې يوازې د پاريس په اوسېدونکو پورې اړه نلري، بلکه د فرانسې ټولو خلکو پورې تړاو لري، ولې چې د ټولې فرانسې د انقلابيانو استاذو، چې په پاريس کې حاضر وو، په دې بريا کې برخه واخيسته او په ځانګړې توګه د مارسي زړورو اوسيدونکو، چې د «مارسيز» انقلابي سرود د دوى په نامه معروف دى، په هغه کې لويه ونډه لرله.

د قانون جوړولو جرګه ناهوبله شوه، چې د پرګنو برى خوامخوا په رسميت وپېژني او د هغو غوښتنه– په لا ښه عبارت سره د هغو فرمان د پاچا د عزلولو په موضوع کې ومني. خو له هغه ځايه په دې توګه د

بنسټ ايښودونکو جرګې پرېکړې، چې يوه يې د پاچا د پر ځای پاتې کېدو پر بنسټ وه، نه منل کېده. د قانون جوړولو جرګې يو فرمان صادر کړ، چې د فرانسې ولس پرته له کوم توپير څخه د کنوېنشن (د بنسټ ايښودونکو نوې جرګې) لپاره راوبلل شي.

هغه پايلې چې د اګوست له ۱۰مې ورځې لاس ته راغلې، کولای شو په لاندې ډول لنډې کړو:

۱ – د پاچا عزل.

۲ – سياسی برابروالی، چې لمړي اساسي قانون له ولس څخه سپمولی ؤ.

۳ – پرته له کومه شرطه د فيوډالانو د ډېرو حقوقو له منځه ول، چې تر هغې موکې پورې بايد د بزګرو له خوا پېرودل شوي وای.

۴ – د هغو کسانو د مالونو پلورل، چې له پرديو څخه د فرانسې د انقلاب پر ضد د مرستو اخيستلو لپاره له هېواد نه بهر تلي وو.

۵ – د کمون (د پاريس حکومت) ځواک موندل، چې ځان يې د فرانسې د بريالي ولس استاذی بللو او

د قانون جوړولو د پرېکړې پرته يې د پاچا د حبس دستور صادر کړ.

**د پاريس کمون:** په هغه موکه کې د قانون جوړولو د جرګې بنی ډله ډېره کمزورې شوې وه او نږدې له منځه تلې وه، خو د قانون جوړولو د جرګې، چې د ژېرودنيانو په لاس کې وه او د پاريس کمون تر منځ، چې د روبسپير او د هغه د يارانو په لاس کې ؤ، کلک توپير رامنځ ته شو او کمون، چې غوښتل يې لا پرېکړنده او لا انقلابي پرېکړې وکړي، د قانون جوړولو جرګه يې د مشکوکو کسانو په نيولو او حبسولو او د جنايي محکمې په دايرولو اړه کړه.

ژېرندنان عمومن ازادي غوښتونکي بورژواګان وو، چې د بورژوازی د ګټو ترلاسه کېدل يې د انقلاب لپاره کافی بلل. دغو په دې موکه کې، چې د بورزوازی ګټې ترلاسه شوې وې، له قانون څخه يې خبرې کولې او د کلکو پرګنيزو پرېکړو څخه يې ډډه کوله، خو د ربسپير يارانو، چې د قانون جوړولو همدې جرګې غړني وو، چټک او کلک اقدامونه يې د انقلاب بري ته رسولو لپاره لازم ګڼل او له دې څخه

يې کوم ډار نلرلو، چې پرګنې خوځښت ته راوبلي. هغو د برسېرنو قانونو په جوړولو او د هغو مقرراتو په بهاندولو، چې يوازې د بورژوازۍ تجارت او صنعت ازاد کړي او د پرګنو د دردونو بنسټيزه هوبله نه وي، قناعت نه کولو او غوښتل يې، چې د شتمنو بورژواګانو پر ضد د بېوزلو طبقو له ګټو څخه پلووالی وکړي.

کله چې بهرني خبرونه او انقلاب ته د خاينانو د عملياتو خبر، چې د هغه د پرځولو لپاره پاريس ته نږدې کېدل، کمون ته راورسېده، اعلان يې وکړ، «وطن په خطر کې دی» او د پاريس له خلکو يې وغوښتل، چې يو ۶۰،۰۰۰ کسيزه پوځ جوړ کړي.

په دې موکه کې د «مارا» د پاريس کمون د غړي لخوا يو شعار ورکړای شو، چې د فرانسې په انقلاب کې يې نوې پاڼه خلاصه کړه. دغه شعارونه دا وو:

«ولس بايد ځان پخپله وژغوري او بهرني غليم ته مخ رانه وړي، مګر هغه وخت چې داخلي غليمان يې وژلي وي.» د پاريس کمون حق لاره، هغه څه

چې د فرانسې انقلاب یې په خطر کې اچوه، د دې او هغه تردید او د هغو کسانو خیانت ؤ، چې لا یې د خلکو منځ ته لار موندله. په هره توګه د بندیانو وژنه د سپتامبر په ۲مه ورځ پیل شوه او څلور ورځې او څلور شپې د سپتامبر تر ۶مې پورې په اوږدو وغزېده او ۱۱۰۰ کسه یې د مرګ کندې ته واچول.

د پاریس کمون د هغې روح له امله، چې په انقلاب کې ننوتې وه، ویې کولای شول د فرانسوي هېوادپالو څخه یو سربښندونکی پوځ جوړ، د پروس لښکرې، چې تر «وردن» پورې مخکې راغلې وې، په «والمي» کې ماتې کړي.

**د بنسټ ایښودونکو دوهمه جرګه:** د بنسټ ایښودونکو نوې جرګه، چې په کنوینشن باندې معروه ده، غالبن د ژاکوبنانو له منځه وتاکل شوه او په خپلې لومړۍ غونډې کې د ۱۷۹۲م د سپتامبر په ۲۱مه یې د سلطنت په له منځه وړلو فرمان ورکړ او د روبسپیر او هغه یارانو په ټینګار یې ۱۶م لویي، چې د هغه د خیانت په هکله نوي اسناد کشف شوي وو، د ګیوتین ښنو ته ولېږه.

کنوېنشن د دې لپاره چې په ځانګړو موکو کې وکولای شي چټکې پرېکړې وکړي، څو نوي سازمانونه منځ ته راوړل: انقلابي محکمه، په هر کمون کې د څارنو کمیټه، د ملي رغونې کمیټه – کنوینشن د ژېرندنیانو او غرنیو له وګړو څخه جوړېده او ژېرندنیانو څه ډېر نفوذ پکې لرلو. لکه څنګه مو چې وویل، ژېرندنیان اوغرني په خپلو کې په کشمکش کې وو، تر څو چې په پای کې غرنیو د «مارا» او «روبسپیر» شانې کسانو په هڅه د پاریس کمون په مرسته ۸۰،۰۰۰ کسه وسله وال او ۶۰ توپونه راغونډ کړل، د کنوېنشن ځای یې کلابند کړ.

کنوېنشن لمړی مقاومت وکړ او د هغه رئیس وویل: «ولس څه غواړي؟ کنوېنشن پرته له ده او د ده درناوي نه بل څه نه دي کړي». له غرنیو څخه یوه ځواب ورکړ: «ولس پاڅون نه دی کړی، تر څو جملې جوړول واوري، بلکه د هغه پاڅون د دې لپاره دی، چې فرمان ورکړي. ولس غواړي، چې ۳۴ کسه ګناهکاران هغه ته تسلیم کړي» او له هغه ځایه چې

کنوېنشـن بیـا هـم د مقاومـت پـه لټـه کې ؤ، غرنیـو وسلې ته اشاره وکړه. کنوېنشن ناچاره شو، خپـل ۲۹ کسه غړي وباسي، نظر بند یې کړي.

له دې وروسته کمون پر کنوېنشن مسلط شـو او د هغه غلبـه نـه یـوازې سیاسي فتحـه، بلکـه ټولنیزه فتحه هم وه: د ټولنې د ښکته طبقو برى پر شـتمنې بورژوازۍ باندې.

له هرې خوانه یې د دې بري پر ضد پاڅون وکـړ او ژېرندنیانوو په هـره ګوښـه کې خوځښـتونه پـه لار واچول، په لیون کې یې یو معروف غرنی وواژه او یـوه نجلۍ د «شارلوت» مارا په نامه ووژلـه او د هغې زړه یې کنوېنشن ته وړاندې کړ.

په همدې موکه کې بهرنې جګړې هـم پـه بشـپړه شدت سره پایښه لرله او پردي د داخلي غلیمـانو پـه هڅونه سره په پرمختګ او د وحشت په رامنځ کولـو بوخت وو. په داسې ځانګړې موکې کې لازمه وه، چې د کنوېنشن لخوا پرېکړنده تکتیک پلې شي، د داخلي غلیمانو ټکـول پـه کلکـه توګـه ترسـره شي، تـر څـو د

بهرنیو په وړاندې مقاومت چمتو شي. دا تکتیک روبسپیر پر کنوېنشن تحمیل کړ.

روبسپیر د ۱۷۹۳م د جولای په خپلو یادښتونو کې داسې لیکلي: «داخلي خطرونه له بورژواګانو څخه راځي. پر پورژوازۍ باندې د بري لپاره باید ولس په خپلو کې یو او متفق کړو. ټول وسایل چمتو شوي وو، چې ولس د بورژواګانو په سپارې پسې وتړي او د جمهوریت ملاتړي تر ګیوتین لاندې ووژني. هغو په مارسي، بردو او لیون کې بریالي شول، په پاریس کې هم که اوسني خوځښت نه وای، بریالي کېدل ... ولس باید له کنوېنشن سره یو شي او کنوېنشن له ولس څخه ګټه پورته کړي. باید جنګیالیو ته وسله ورکړل شي، باید هغوی په غوسه راوستل شي، باید هغوی روښان او پوه شي، باید د ولس مینه د جمهوریت سره په ټولو شونو وسایلو راوپاروو».

په همدغه دور کې وو، چې کنوېنشن نوی بنسټیز قانون، چې د «۱۷۹۳م بنسټیز (اساسی) قانون» باندې معروف دی، تصویب کړ او مور به د

هغې يوې برخې ژباړه د دې کتاب په پای کې راوړو.
خو له هغه ځایه چې یاد شوی قانون خورا ازادي غوښتونکی ؤ او په هغه ځانګړې موکه کې نشوای پلې کېدلی، د هغه پلي کول یې شاته واچول.

کنوېنشن د ۱۷۹۳م د اکتوبر په ۱۰مې فرمان ورکړ، چې د فرانسې لنډمهاله حکومت به انقلابي حکومت وي. په همدې موکه کې یې د ملي رغونې کمیته روبسپیر ته وسپارله او ده ته یې بشپړ واکونه ورکړل، هسې چې وزیران او جنرالان ټول د ده تر فرمان لاندې وو.

انقلاب مخ په وده روان ؤ، د کمون پلویانو د بورژوازۍ له تمې تېری کړی ؤ، د مطلق مساوات په لور تلل و دا فرمان، چې د درلیون لخوا صادر شو، د هغو د فکر د ډول استاذی دی:

«له هغه ځایه چې شتمني او بېوزلي دواړه باید د مساوات له رژیم څخه ورک شي، نور به یوه ډوډۍ د خالصه وړو څخه شتمن ته او یوه ډوډۍ له سبوس څخه بېوزلي ته نه پخېږي، ټول ډوډۍ پخوونکي د حبس د سزا په بدل کې دنده لري، چې

یوازې یوه ډوډۍ او د ډوډۍ ښه ډول، د **مساوات ډوډۍ** چمتو کړي». همدې کسانو پرېکړه وکړه، چې ټولو ګزروهلو خلکو او زړو ته د شتمنو په لګښت ډوډۍ، کالي او کور ورکړای شي.

له دې وروسته د کمون د نویو عملیاتو دور پیل شو او د مظنونانو د قانون پر بنسټ، چې د کنوېنشن له تصویب څخه تېر شو، د هغو توطئه جوړونکو په وژنه یې، چې د بهرنیو غلیمانو په ګټه یې کار کاوه، پیل وکړ. ښکاره ده، چې د انقلابي محکمو څارنه چندانې دقیقه نه وه، په هغسې ځانګړي وضعیت کې یې کولای نشول دقیقه واوسي، له دې کبله ځیني بیګناهان هم ووژل شول. خو هغه موخه چې ربسپیر او د ده یارانو لرله، له فوري پرېکړو پرته د پلي کولو وړ نه وه.

له لمړیو کسانو څخه چې ووژل شول، ماري آنتوانت او هغه ژیرندنیان وو، چې د جولای له ۲مې ورځ څخه ونیول شول. «دانتون» هم له هغو کسانو

څخه ؤ، چې د هغو ضعفونو په جرم، چې ښودلي يې
وو، په ګيوتين باندې اخته شو.

د ۱۸۹۳م د مارچ له لمړي څخه د ۱۷۹۴م د جولای تر ۲۷مې بورې د هغو کسانو شمېر، چې محاکمه شول او ووژل شول، په ټولې فرانسې کې له ۱۲۰۰۰ کسانو ډېرېدل. دا وژنې پلې شوې، خو د کمون اصلي موخه هم ترلاسه شوه. په دې مانا چې بهرنۍ او داخلي خطر ورک شو، د ژېرندنيانو خوځښتونه، چې د پرګنو ملاتړ يې ونه مونده، ماتې وخوړه. اطريشيان او پروسان د فرانسې له سرحده لېرې وشړل شول.

خو د دې وضعيت ساتل خورا ستونزمن وو، ولې چې هم پخواني زاړه پالونکي او هم تازه دوران ته رسېدلي انقلابي بورژواګان د ربسپير له طرحې سره مخالف وو. **ربسپير** په خپل يوه رپوټ کې ويلي وو: د انقلاب موخه د هسې وضعې چمتو کول دي، چې «په هغه ځای کې هېڅ ډول ځانګړتياوې منځ ته رانشي، مګر د خپله مساواتو څخه پرته ...، چې هلته هېواد د هر وګړي هوساينه چمتو کړي، چې هلته

سوداګري د ملي شتمنۍ سر چینه وي، نه دا چې یوازې د څو کورنیو بې هانده شتمني چمتو کړي».
دې ورانديزونو، که څه هم د پلي کېدو لپاره کومه دقيقه نقشه نلرله، خو کافي وه، چې بورژوازي، چې غوښتل يې انقلاب د خپلې ازادې سوداګرۍ په ګټه بشپړ کړي، د ربسپير پر ضد راوپاروي. نور مرتجعان هم له ده سره همداستانه وو او د کمون وژنې يې د بېرحمۍ او قساوت په نامه پلمه کولې.

ربسپير ويل:

«**تر څو پورې به د جبارانو لېونډوله ستم کول نیاوګلوي او د ولس نیاوګلوي بربریت او سرغړونه ونومول شي؟ ځیني چیغې وهي: پر پاچا پالونکو ترحم! پر تباهکارانو ترحم!، نه! پر بې ګناهۍ ترحم، پر کمزورو ترحم، پر بېوزلو ترحم، پر بشريت ترحم!.**»

ربسپير د ژان ژاک روسو د ښوونو زده کوونکی ؤ او اصولو ته په تړاو کې يې ځانګړی تعصب لرلو. ربسپير د بنسټ ايښودنکو په جرګې کې وړانديز وکړ، چې د وژلو سزا دې له منځه لاړه شي، خو کله چې

خپله په عمل کې د ننه شو او د پسات درجه او د پربکړنده اقدامونو اړتیا یې وکتله، بله تګلاره یې خپله کړله.

په پای کې ژبړندنیانو د کنوبشن – اصلاح – معتدله ډله له ځان سره ملګرې کړه، توطئه یې جوړه کړه، چې دی د دیکتاتورۍ او انسان وژلو په تور محکوم کړي او د دوی لمړنې نقشه دا وه، چې د ربسپیر له خبرو کولو مخنیوی وکړي، ولې چې د هغه د خبرو په اغېزه پوهېدل. د جون په ۲۷مې په ورځ د کنوبنشن په غونډې کې لاس په کار شول او خپل تورونه یې په بشپړه تودبنت سره د ربسپیر پر ضد د شورونو او د لاسونو د پړکا په منخ کې بیان کړل، ربسپیر څو ځله د خبرو اجازه واخیستله، خو د غونډې مشر هر ځل د دې لپاره چې د ده غږ پټ کړي، ګنټۍ یې په غږ راوستله. کله چې د ده د نیولو امر صادر شو، کوکه یې کړه: «د وروستي ځل لپاره، د قاتلانو مشره! له تا نه د خبرو اجازه غواړم!» د ده دا غږ یې هم د «ژوندی دې وي جمهوریت»

په نارو سره ورک کړ. ربسپير وويل: «جمهوريت لـه منځه لاړو! غله بريالي شول!».

کله چې د ربسپير د نېولو خبر د پاريس کمـون تـه ورسـېدو، پـه خوځښـت يـې لاس پـورې کـړ او روبسپير ته يې خلاصون ورکړ. خو د خيانت له املـه مات شو او ربسپير په دې حال کې، چې زنه يې ماتـه وه، ونېول شو او لـه نـورو ۲۱ کسـانو سـره د ګيـوتين وبخ ته وځکول شو. د هغې ورځې په سبا ۷۰ کسه او په بله ورځ ۱۳ کسه د کمـون غـړي د هماغـه کسـانو په لاس، چې ځانونه يې د وژلو مخالف ښـکاره کـول، ووژل شول.

کله چې د محکومانو ګاډی د اعـدام ډګـر پـه لـور روانه وه، ربسپير له خپلو شنو ورېښيمنو کاليو سـره، له هغه مخ سره، چې د وينو په کرښو انځـور شـوی ؤ او د کلک درد له امله يې زنه په ځـان کـې ننـوتې وه، په پټو سترګو سـره يـې د خپلـو نابشـپړه عمليـاتو پـه هکله فکر کاوه. کله، چې د ګيوتين ببخ تـه ورسـېدو، د جـلاد شـاګرد د هغـه د زخـم پټـې هسـې پـه کلکـه وشکوله، چې وحشتناکه کوکه له ربسپير څخه پورتـه

شوه او پرګنو وکتل، چې د ده لاندې زامه لـه پـورتنۍ زامې څخه جلا شوه او د هغه له خولې څخه، چې پـه ډاروونکې توګه خلاصه پاتې شـوه، د ده رنګینـه وینـه وبهېده.

ان د ربسـپیر غلیمـان انصـاف کـوي، چـې دی هېڅکله له خپلو پرنسیبونو څخه جلا نشو او د خپل ځواک په منځ کې یې په بشپړه سادګۍ سره ژونـد کاوه، هسې چې ده ته یې د (نـه فاسـدېدونکي) لقـب ورکړی ؤ.

**د انقـلاب پـای لیـک:** د انقـلاب برخـه لیـک د ربسپیر له مرګه وروسته د بورژواګانو لاس ته ولوېده، چې هغه یې ودرولو.

د بورژواګانو ډار له انقلاب څخـه او د پاچـا پـالو مرتجعینو عکس العمل لامل شـو، چې کنوېنشـن د ۱۸۹۴م د اکتوبر په ۲۶مې خپل ځای (دیرکتوار) تـه ورکــړي او د ۱۸۹۹ د نــوامبر لــه ۹مــې د نــاپلیون دیکتاتوري پیل شـوه: لـه ناپلیون څخـه وروسـته لـه ۱۸۱۵م ځخه تـر ۱۸۴۸مـه پـورې مشـروطه سـلطنت بیرتـه پـه فرانسې کې ټینـګ شـو او مشـروطیت پـه

وروستي کال کې د انقلاب له امله په جمهوریت بدل شو، خو دا جمهوریت هم په ۱۸۱۵م کې (د دریم ناپلیون په لاس) له منځه ولاړ. تر څو چې ۱۸۷۰م انقلاب پېښ شو او په دې انقلاب کې، چې د پرولتاریا طبقې پلویان یې اصلي چلوونکي وو، نږدې د یوې میاشتې په موده کې په پاریس کې کارګري حکومت برقراره شي، خو دا حکومت هم په بشپړه غوسې سره د بورژوازۍ په لاس مات شو او د حمهوریت رژیم په فرانسې کې مستقر شو.

په دې انقلابونو کې هغه څه چې ډېر د پام وړ دي، د حکومتونو ماهیت دی. د فرانسې دولت د انقلاب څخه وړاندې پر فیوډالانو تکیه لرله او د هغو د ګټو ساتندوی ؤ.

د دولت ماشین، چې د دې انقلابونو په ترخ کې ځو ځله نسکور شو، نه یوازې ووړ نه شو، بلکه لا بشپړ شو. د فرانسې د انقلاب له لاملونه څخه یو دا ؤ، چې بورژواګان د خپلو صنعتي او سوداګریزو ګټو له پلوه غوښتل، چې په حکومت کې لا ډېر مرکزیت شتون ومونددي او دا موضوع لا ډېره د دولت د

ځـواک د تېنګـار او د هغـه د ماشـين د ودې لامـل شوه. له بله پلوه بورژوازي وروسته له هغه نـه چې د کـار پـر سـر راغلـه، د دې لپـاره چې وکـولای شـي د انقلابونو څخه مخنيوی وکړي، ناچاره د دې دستګاه ځواک ډېر کړي او له دې کبلـه د بـورژوازۍ دولـت د پخـواني فيـوډالي دولـت پـه پرتلـه د دوو ځـانګړو بڼـو خاونـد ؤ. بوروکراسـي او تلپايـه پـوځ، چـې د دولـت چـوپړو شـمېر يـې ډېـر کـړ، د دې دسـتګاه مـاتول لا ستونزمن ګرځوي.

بورژوازۍ نه غوښتل د ځواک په لاس تـه راوړلـو سره، د دولت دستګاه، دا د فشار ماشين مات کـړي، بلکه غوښتل يې چې هغه ته د بـورژوازۍ لـه اقتصـاد سره سمون ورکړي. نو د فرانسې انقلاب د دولت پـه ماهيـت کـې، چـې د ځـانګړې طبقـې حاکميـت دی، کوم بدلون رانوړو، بلکه هغه ډله يې بدلـه کـړه، يـانې بورژواګان يې د فيوډالانو پر ځای کېنول.

*****

## ۳۷

## د بشر د حقوقو اعلامیه

د فرانسې ولس استاذي، چې په «ملي جرګې» کې ټول شوي دي، له هغه ځایه چې ویې کتل، چې د بشر د حقوقو هېرول او هېڅ ګڼل د عمومي بدمرغیو او پسات یووازینی لامل دی، پرېکړه یې وکړه، چې په یوې رسمي او پرتمینې اعلامیې کې د بشر طبیعي، نه انتقالېدونکي او مقدس حقوق طرح او بیان کړي، تر څو دا اعلامیه هرکله د ټولنې د ټولو وګړو د هیئت په پام کې وي او پرله پسې د هغو حقوق او دندې یادې کړي، تر څو وکولای شي د مقننه ځواک عملیات او د مجریه ځواک عملیات په هره شېبه او یا موخه، چې له هر سیاسي سازمان څخه په پام کې وي، پرتله کړي او په پای کې هغوی لا درنې وګڼي، تر څو د وګړو غوښتنې، چې له دې نه

وروسته په ساده او مسلم اصل بانـدې بنسـټ شـي، تل اساسي قانون او عمومي نيکمرغۍ ته پام واوسي.

په پايله کې ملي جرګه د متعال خـالق پـه حضـور کې او د ده د عنـايتونو پـه سـيوري کې دا حقـوق د بشر او ټولنې د وګړو لپاره پېژني او اعلاموي:

۱ – د بشر وګړي پـه حقوقـو کې ازاد او مسـاوي دنيا تـه راځي او پـه حقوقـو کې ازاد او مسـاوي پـاتې کيږي، ټـولنيزې ځانګړتيـاوې نشـي کـولای پرتـه لـه عمومي ګټو څخه بل بنسټ ولري.

۲ – د هـرې سياسـي ټـولنې نـه موخـه د بشـر د طبيعي حقوقـو سـاتل دي، چـې د زمـانې تېرېـدل نـه منـي او دا حقـوق عبـارت دي لـه: ازادۍ، مالکيـت، امنيت او د ناتار په وړاندې مقاومت څخه.

۳ – هر حاکميت اصولن پر ولـس بانـدې بنسـټ شوی او هېڅ هيئت او هېڅ کـس نشـي کـولای کـوم ځـواک پلـی کـړي، چـې ښـکاره لـه ولـس څخـه يـې سرچينه موندلې ده.

۴ – ازادي د هر عمـل د سـرته رسـولو د ځـواک څخه عبارت ده، چې بل ته ضـرر نـه رسـوي. پـه دې

توګه د هر وګړي د طبيعي حقوقو پلي کول هاندونه نلري، مګر هغه هاندونه، چې د هغو شتون له دې حقوقو څخه د ټولنې د نورو غړو برخه من توب تأمينوي. دا هاندونه يوازې قانون ټاکلی شي.

۵ – قانون حق نلري، منعه کړي، مګر هغه عمليات، چې د ټولنې لپاره زيان راوړونکي وي. له هغه څه نه چې د قانون له لارې منعه شوي نه وي، نشو کولای مخنيوی وکړو او هيڅ څوک نشو کولای هغه څه ته، چې قانون حکم نه وي کړی، اړ کړو.

۶ – قانون د عمومي ارادې له بيان څخه عبارت دی. د ټولنې ټول وګړي حق لري، چې شخصن او يا د استاذو له لارې د هغه په جوړولو کې برخه واخلي. قانون بايد د ټولو لپاره يو وي، څه په هغه برخه کې، چې له کوم شي نه ملاتړ کوي، څه په هغه برخه کې، چې سزا ورکوي. له هغه ځايه چې د ټولنې ټول وګړي د قانون له پامه له يوبل سره مساوي دي، هغوی کولای شي ټولو مقامونو، پوستونو او عمومي بوختياوو ته د ځانونو د اهليت پر بنسټ په مساوي

توګه او پرته له کوم توپير نه، د فضايلو او هنرمنديو د توپير څخه پرته، ورسېږي.

۷ – هېڅ وګړی کولای نشو تورن کړو يا توقيف کړو او يا حبس کړو، مګر په هغو برخو کې، چې قانون ټاکلي او د هغو ستونزو پر بنسټ، چې قانون مقرر کړي دي. هغه کسان، چې خپل سري دستورونه صادروي او يا د داسې دستورونو صادرولو ته بل هڅوي او يا د هغو پلي کوونکي دي، بايد وترټل شي. د ټولنې هر وګړی، چې د قانون پر بنسټ بلل کېږي او يا جلبېږي، بايد ژر اېلانيت وکړي. داسې شخص که مقاومت وکړي، مجرم دی.

۸ – قانون نشي کولای جزاګانې پلې کړي، مګر دا چې په بشپړه توګه او صريحن ضروري وي او هېڅ څوک مجازاتولی نشو، مګر د هغه قانون پر بنسټ، چې وضعه شوی او له وړاندې د هغه ځانګړي جرم لپاره تصويب شوی او قانونن د هغه جرم سره سمون ورکړ شوی دی.

۹ – هر څوک تر هغه وخته پورې، چې د هغه د مجرموالي اعلام شوی نه دی، بیګناه ګڼل کېږي. هرکله د ده بندي کول نه ډېره کوونکي وي، له هر ډول تشدد څخه، چې هغه ته رسېدو لپاره ضروري نه وي، باید جدن مخنیوی وشي.

۱۰ – هېڅ څوک نباید د عقایدو، ان مذهبی عقایدو په لحاظ، تر هغه وخته پورې چې د هغو عقایدو څرګندونه عمومي اوډنه، چې قانون ټینګه کړې ده، ګډوډ نکړي، د مزاحمت سره مخامخ شي.

۱۱ – د اندونو او عقایدو ازاد تبادل د بشر تر ټولو ارزښتناکه حقوقو څخه یو دی. له دې کبله د ټولنې هر وګړی کولای شي په ازاده توګه خبرې وکړي، ولیکي او په چاپ یې ورسوي، مګر دا چې د هغو برخو پر بنسټ، چې د قانون له لارې ټاکل شوي دي، له دې ازادۍ نه ناوړه ګټه پورته کړي.

۱۲- د بشر او د ټولنې د وګړي د حقوقو تضمین ایجابوي، چې عمومي ځواک شتون ولري. نو دا

ځواک د عموم په ګټه جوړ شوی، نه د هغو کسانو په ځانګړې ګټه، چې د هغو لاس ته سپارل شوی دی.

۱۳ – د عمـــومي ځـــواک ســـاتل او د اداري لګښتونه یوې ګډې مالیې ته اړتیا لري. دا مالیې د ټولنې ټولو وګړو په منځ کې باید د هغو د توان پر بنسټ په مساوي توګه وویشل شي.

۱۴ – د ټولنې وګړي حق لري، چې په خپله لاسه او یا د خپلو استاذو له لارې د عمومي مالیاتو ضرورت، د هغه نسبت د وګړو د شتمنۍ په پرتله وڅیړي، هغه سره په ازاده توګه رضایت وکړي، د هغه لګښت وڅاري، د هغې تعرفې د لاس ته راوړلو بنسټ او موده وټاکي.

۱۵ – ټولنه حق لري، د خپلو ادارو له هر مامور څخه حساب واخلي.

۱۶ – هره ټولنه، چې هلته د حقوقو تضمین تأمین شوی نه دی او د ځواکونو بېلتون نه دی شوی، په هېڅ وجې د اساسي قانون خاونده نه ده.

۱۷ – له هغه ځایه چې مالکیت د نه نقضېدلو وړ او مقدس حق دی، هېڅ څوک نشي کېدای له هغه

نه بې برخې کړي، مګر په هغه بڼه کې، چې عمـومي ګټې چې قانونن تثبيت شـوي، هغـه ايجـاب کـړي او په دې شرط چې د هغه نياويز تاوان له وړانـدې پـرې شي.

*****

## ۳۸

## د ۱۸۹۵ اساسي قانون دوې مادې

۲۱ – عمومي مرستې د ټولنې مقدس فرض دی. ټولنه باید خپلو بېوزلو وګړو ته، څه له دې لارې، چې هغو ته کار چمتو کړي او څه د هغو لپاره، چې په کار کولو توانمنده نه دي، د ژوندانه د وسایلو چمتو کولو له لارې، د ژوند لوښي ورکړي.

۲۵ – کله چې حکومت د ولس حقوق نقضوي، انقلاب د ولس لپاره او د ولس هرې ډلې لپاره تر ټولو مقدسه او تر ټولو ناګزیره دندو څخه دی.

## پای

## د محسن خپرندوی چاپ کړي:

- امپریالیزم
- لنین (سه مقاله از استالین)
- مارکس، انگلس و مارکسیزم (چند مقاله از لنین)
- تاریخ حزب کمونیست (بلشویک) اتحاد شوروی
- از کمون اولیه تا کمونیزم
- قسم به خونتان رفیقان! (زندگی و پیکار قهرمانانه‌ی شماری از کمونیست‌های جانباخته زیر ساطور رژیم تبهکار اسلامی ایران)
- مائوتسه دون (زندگینامه مختصر)
- اصول مقدماتی فلسفه اثر ژرژ پولیتسر
- ماتریالیزم تاریخی برای نوجوانان
- ماتریالیزم دیالکتیک برای نوجوانان
- ماتریالیزم تاریخی برای نوجوانان (پشتو)
- ماتریالیزم دیالکتیک برای نوجوانان (پشتو)
- از کمون اولیه تا کمونیزم به زبان پشتو

## ډیر ژر خپریږي:

- اقتصادی سیاسی به زبان ساده
- مبانی و مفاهیم مارکسیزم